حکومت په قضائیه سیستم (Judiciary) رڼا نده اچولې (Adam, 1983)[٣٦]. خو، داسلامي دولت د «تولواک» اود «قضائیه سیستم» په اهمیت باندې داسلام په ټینګار، خمیني اسلام یو متمایز نظام ښیي. خمیني وایي چې، «عدالت» اسلامي فقهاو ته یو فوق العاده واک ورکوي. په هر حال، سره لدې چې سني بنسټپالو اسلامي پوهانو او متفکرینو قضایي سیستم ته ډیر پام ندی اړولی، خو دیوه قانون په توګه د شرعې بشپړ انفاذ داسلامي بنسټپالنې اوراډیکالیزم ډیره ستره سیاسي غوښتنه ده[٣٧].

له ملي جریان او نشنلیزم سره په مخالفت کې اسلامي بنسټپالنه او راډیکالیزم یوه خوله ده. وایي چې نژادي - قومي سرحدات سیاسي ارزښت نلري. یوازې دیني اختلافات دی چې د مسلمان او غیر مسلمان په منځ کې رسمیت لري (Pipes, 1983)[٣٨].

اسلامي بنسټپالنه او راډیکالیزم له نشنلیزم سره نه یوازې دیوه نړیوال اسلامي سیاسي سیستم د نه منلو په سر وران دی، بلکې دابنسټپالنه نشنلیزم په سیکولریزم هم تورن کوي (Eposito, 1983, Sivan, 1985, Piscatori 1986)[٣٩].

او بالاخره اسلامي بنسټپالنه او راډیکالیزم له نشنلیزم Nationalism، نوې کونې Modernization اوسیکولریزم Secularism، درې واړو سره کلک دښمن دی[٤٠].

## خو په افغانستان کې:

اسلام دخپل ظهور څخه تر ٩٢-١٩٦٤ پورې په سیاسي قدرت کې دونډې او په افغان ټولنه کې له شتو سیاسي، اجتماعي او کلتوري واقعیتونو پښتونولي، پښتانه او افغان نشنلیزم درې واړو سره دسیاسي ګوزارې او جوړښت ښل ښل پړاوونه وهلي دي. خو، په عمومي توګه تر ١٩٦٤، په تیره بیا تر ١٩٧٨ پورې، اسلام په افغان ټولنه کې له دولتي سیستم نه آزاد دقدرت دیوې اجتماعي ستنې په توګه دخپل تصوف، په دولت او ټولنه، دواړو، کې د قدرت دسیاسي او اجتماعي ستنې په توګه دخپل مذهب او دحنفي فقهې په بنسټ د ولاړو درې ګونو شرعي محکمو (قضائیه قوه Judiciary) په بڼه کې په

افغان دولت کې د خپلې سیاسي ستنې په درولو اکتفا کړې وه[٤١].

د قدرت همدې درې گونو ستنو اسلام ته په افغانستان کې معتدله (Moderate) بڼه ورکړې وه. همدې اعتدال، اسلام په افغانستان کې له افغان نشنلیزم سره په سیاسي او ان په ځینو برخو کې په عقیدوي جوړښت کې راوستی و[٤٢]. په حقیقت کې همدې جوړښت په معاصر افغانستان کې، د سیاسي قدرت یو عنعنوي مثلث (Executive, Judiciary, Legislature) Triangle of Political Power منځ ته راوستی و[٤٣]. په ١٩٦٤ کې د دموکراسۍ د لسیزې په پیل سره، اسلام په افغان سیاست کې خپل پورتنی سیاسي موقف د ځان لپاره کم وباله؛ له تیوریکي پلوه له ١٩٦٤ او په عملي لحاظ له ١٩٧٨ نه، اسلام په سیاسي لحاظ راډیکال او په عقیدوي لحاظ بنسټپال شو[٤٤].

په همدې بنسټ یې په افغان سیاسي ډگر کې د سیاسي «دویم قوت» په توگه په هېواد کې د سیاسي «لومړي قوت» کمونستي راډیکالیزم او سیاسي «دریم قوت» افغان نشنلیزم په ضد د مخالفت مورچل جوړه کړه.

په ٧٩-١٩٧٨ کې دې اسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم په افغانستان باندې د روسانو د یرغل څخه په استفادې غټې پوځي - مالي امکانات لاس ته ورووړل. په ١٩٩٢ کال یې د سیاسي قدرت په نیولو د سیاسي قدرت نوموړی افغان عنعنوي مثلث مات او په افغانستان کې یې د افغان نشنلیزم په لاس جوړه شوې څو سوه کلنه سیاسي دستگاه ورانه کړه.

په اسلامي دولت کې د «دیني علماو» او «اسلامي سخت دریځو» په حاکم رول باندې د اسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم د عملي تینگار له مخې په ٩٧-١٩٩٢ دوره کې په کابل کې له طالبانو نه مخکې د رباني - حکمتیار د ١٩٩٧ کال د گډ حکومت غټې پوستونه نه یوازې دا چې په نژادي بنسټ ویشل شوي وو او تاجکوان د پښنور د ١٩٩٢ کال د اپریل د ٢٤ نېټې د تړون[٤٤*] په بنسټ د قوماندان مسعود د شورای نظار او رباني د جمعیت له لارې د جمهوري ریاست، د دفاع، بهرنیو او کورنیو چارو د وزارتونو په شمول نور مهم او غټ دولتي پوستونه خپل کړل، په سلو کې ٨٥،٢ دا پوستونه اسلامي سخت دریځو او پاتې په اصطلاح منځ مهالو او نورو تنظیمونو ته ورکړل شوي وو (دواک

فونډېشن Wak Foundation for Afghanistan (WFA) څېړنه [٤٥].

په افغانستان کې د دویم سیاسي قوت په توګه اسلامي بنسټپالنه او راډیکالیزم د اجتماعي، اقتصادي، کلتوري او سیاسي ژوند په ټولو اړخونو کې د نړیوالې اسلامي بنسټپالنې په لارو روان دی. په افغان بنسټپالو - اخوانیانو کې حکمتیار، چې د ګوند ډېر کار کوونکي یې د ده په ګډون د سیکولر لوړو تحصیلاتي موسسو زده کړي او فارغان دي، هم د اسلامي حکومت په راس کې د اسلامي علماو (ملایانو) سره جوړندي. حکمتیار له یوې خوا د دموکراسۍ او علماو رول ردوي. خو، له بلې خوا، انتخابات او په چارو کې د خلکو ګډون mass participation مني [٤٦].

حکمتیار په ۱۹۸۹ کال کې د اسلامي نړیوال حکومت د جوړېدو د لومړي ګام په توګه د پاکستان او افغانستان ترمنځ د یو کانفدرېشن (Confederation) د جوړېدو وړاندیز وکړ [٤٧].

خالص او ملګري ملایان یې هم د اسلامي حکومت په راس کې د ملایانو په تېره ولاړ دي. رباني او سیاف پدې هکله څه غوڅ دریغ نه دی ښودلی. خو، اسلامي بنسټپالنه او راډیکالیزم د طالبانو په بڼه کې په افغانستان کې یوازې او یوازې ملایان د اسلامي دولت ټولواک ټولی ګڼي او بس.

له ۱۹۹۲ کال نه وړاندې د الهي قانون په توګه د شرعې په انفاذ باندې د افغان بنسټپالو او سخت دریځو تېنګار ځکه بې ځایه و چې د اقانون د افغان دولتونو له خوا نافذ و. خو، له ۱۹۹۲ نه راپدې خوا، سیاسي قدرت ته په رسېدو، د اسخت دریځي د دې قانون د انفاذ په یوه داسې وچه بڼه اخته دي چې ورځ په ورځ د ټولنې او د دې قانون ترمنځ واټن زیاتیږي.

دادی د طالبانو په دولتي ډوله تشکیل کې د دیني علماو په حاکم رول باندې د اسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم د عملي تېنګار له مخې د دینې علماو (ملایانو) فیصدي څېړو [٤٨].

**لومړی، له ۱۹۹۵ نه مخکې:**

- په پنځه کسیزه او چته شورا (Inner Shura) کې ټول ملایان، سل په سلو کې.

-په مرکزي يوولس کسيزه شورا (Central Shura) کې نهه تنه ملايان، ۸۲ په سلو کې.

-په پنځو تنو واليانو کې ټول ملايان، سل په سلو کې.

نو په مجموعي توګه د طالبانو د اسلامي تحريک د مشر ملا محمد عمر په ګډون په ټوله دوه ويشت کسيزه رهبرۍ کې د ديني عالمانو (ملايانو) سلواله (فيصدي)، ۹۱ کيږي (*۴۸).

**دويم، له ۱۹۹۵ نه را وروسته** (*۴۸):

د اسلامي امارت د امير المؤمنين په توګه د ملا محمد عمر نه وروسته:

- د اسلامي دولت د رياست او صدارت د ګډې رهبرۍ په اوه کسيزه شورا کې د ديني علماو (ملايانو) سلواله، سل په سلو کې.

- په صدارت پورې په تړلو نهو سترو دفترونو کې د ديني علماو سلواله، سل په سلو کې.

-د اسلامي دولت د اداري رياست په پنځو غټو پوستونو کې د ديني علماو سلواله، سل په سلو کې.

- د کابل ولايت په څلورو غټو ولايتي پوستونو کې د ديني علماو سلواله، سل په سلو کې.

- په اوو ولايتونو کې اوه واړه واليان ملا يان دي، سل په سلو کې.

- د بهرنيو چارو وزارت کې دا سلواله ټيټه ده. پر ته له وزير نه چې ملا دی، پنځه غټې څانګې غير ملايانو ته ور کړل شوي وې (۱۹۹۸).

**- په اجرائيه قوه (کابينه) کې:**

د افغانستان بانک، کابل ښاروالۍ، او د دولتي استخباراتو د رئيسانو په ګډون يوويشتو وزارتي پوستونو کې دا سلواله په سلو کې سل ده.

نو په زغرده ويلای شو چې اسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم د طالبانو په وجود کې ټوله دولتي دستګاه په خپل لاس کې نيولې او ملايان يې د اقتصادي، اجتماعي، سياسي او کلتوري بنسټونو په راس کې درولي دي.

ليدل کيږي چې په ۹۹-۱۹۹۲ دوره کې د رباني -حکمتيار او طالبانو په وجود کې د دويم قوت، اسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم، دولتي تشکيل

يو بشپړ اخواني ، اخواني - نژادي ،نژادي او ملايي تشکيل دی.

**ددويم قوت بالقوه ماتې:**

دريم قوت په بالقوه ډول اوس څه بريالي خو ، په بالفعل ډول ښه مات او دويم قوت په بالفعل ډول ښه بريالی خو په بالقوه ډول څه مات او ددې ماتې عوامل په لاندې ډول دي:

* په اسلامی بنسټپال کلتور باندې دملي کلتور دبدلولو هڅې ، دملي ثقافت او کلتوري شتمنيو لوټ تالان، وهابي لامذهبي تشدد او لاس اچونې، اخواني سخت دريځي او دعقايدو تفتيش، ډېر وچ ملايي سني مذهبي تعصب، په جوماتونو کې دحاضرۍ اچول او په ديني مدرسو باندې دعقلي اوسيکولر ښوونځيو او پوهنځيو بدلول، اجباري ږيره، دښځو دکار او زده کړې مخنيوی او په پای کې دخلکو په اجتماعي - کلتوري ژوند کې په نورو ورته لاسوهنو سره، اسلامي بنسټپالنه لګيا ده په عام ډول افغان ملی کلتور او په ځانګړي ډول دپښتونولۍ يو داسې محافظه کار اجتماعی - سياسي نظام چې لايې هم، ددين په ګډون، دژوند په ځينو کلتوري - سياسي برخو کې دبلې ايډيالوژۍ برلاسي نده منلې (٤٩) په خپل ضد راپاروي.

* په زوره ددولتی - شخصي ځمکو په خپلولو سره په يوه لږ وخت (١٩٧٨-٩٧) کې ديوه نوي قوماندان - فيوډال دمنځ ته راغلي قشر په وړاندې دخلکو کرکه.

* له پيل پيل، ١٩٩٢ نه ، دپېښور دتړون په بنسټ، په افغانستان کې داسلامي دولت دمشر په توګه ديو تاجک تاکل او بيا په دويم پړاو کې په طالبانو پسې دپښتنو دترلو ډېپ ټول او ټول اسلامي بنسټپالنې ته وتلی دی؛

* په هيواد کې دلومړي قوت دماتې نه وروسته دسياسی زعامت دخلا په ډکولو کې ددويم قوت پاتې راتلل.

* سياسي استقلال، ملي واکمنۍ ، دخاورې بشپړتيا او ملي اقتصاد ته ارزښت نه ورکول او په قومي - نژادي حوزو باندې ديوه موټي هيواد دويش پړه په لومړي قوت، کمونستي راډيکاليزم، برسيره په دويم قوت، اسلامي بنستپالنې هم راځي.

# دويمه برخه

## دد رېيم قوت تيوري:

نه يوازې دا چې، درېيم قوت دخپلې غير انقلابي طبعې له امله دعمل کومه انقلابي تيوري نلري، په افغانستان کې ديوه بشپړ درېيم قوت دنشتوالي له کبله ددې قوت دريفورم کومه واحده تيوري هم په لاس کې نشته. دتيورۍ دانشتوالی په سيمه ييز او نړيوال کچ ثه چې په ملي کچ هم دنشنليزم دخام پخلي او يا نه پخلي او نه تبلور نتيجه ده. دنا پېيلو هېوادونو نړيوال غورځنګ اوسوسيال دموکراتانو نړيوال پيوستون په نړيوال کچ يو داسې سياسي- ايډيالوژيک پيوستون منځ ته ندی راوستی چې په سيمه ييز کچ ورته سياسي قوتونه وزېږوي.

په افغانستان کې هم درېيم قوت په يوه بشپړ ګوندي- سياسي او ايډيالوژيک، غير دولتي بڼه کې وجود نلري. ددموکراسۍ په لسيزه کې لکه چې مخکې ووېل شول دريم قوت يوازی د «افغان ملت» او «مساوات» په بڼو کې په ډير کمزوری ايډيالوژيک او سازماني ډول منځ ته راغی. خو هغه هم دلومړي (٩٢-١٩٦٤) او دويم قوت (٩٩-١٩٦٤) دواړو له خوا وتکېده.

په دولتي بڼه کې نشنليزم په دولسمه پېړۍ کې په خپل سياسي- بشپړ تيا يې لومړي پړاو کې دلومړي پښتنانه نشنليزم، په اتلسمه پېړۍ کې ددويم پښتنانه نشنليزم په بڼه کې او دافغان نشنليزم په خپل دريم بشپړ تيايي پړاو کې دننني دريم غير دولتی نيمګړي دريم قوت منډمات کړيدی. دافغان نشنليزم په لاس جوړ افغان دولت هم په نړيوالو سياسي کتارونو کې په يوه دريم کتار کې په پاتې کېدو، مثلاً دنا پېيلو هيوادونو ديوه مؤسس غړي په توګه، پخپله ديوه دريم قوت حيثيت خپل کړی و. نو، که ننني دريم قوت هوښيار روي،

پکارده دافغانستان دننني «سياسي جغرافيې»، «دولت» او «ټولنې» دجوړوونکي افغان نشنلیزم څو سوه کلنه تاریخي تجربه خپل ننني سياسي جريان ته دحقانيت او مشروعيت سياسي سابقه او ددې سابقې په بنسټ، په افغاني هويت ددولت او ټولنې دفزيکي او معنوي بيا رغونې کار خپل سياسي حق وګڼي.

داخو له ۱۹۶۰ لسيزې څخه مخکې ؤ چې، په افغانستان کې دلومړي، دويم او دريم قوت دجوړيدو «ايډيالوژيک» بنسټونه منځ ته راغلل. خو په نوموړې لسيزه کې دخامې دموکراسۍ راتګ ددې درې واړو قوتونو لپاره خام «عملي» بنسټ جوړ کړ. لومړی، لومړي قوت دکمونستي راډيکاليزم ددکتاتورۍ او ترور دنظام په توګه ددموکراسۍ له راتګ څخه په څوار لسو کلونو کې، او ددويم ځل لپاره دويم قوت، داسلامي بنسټپالنې دمذهبي دکتاتورۍ او ترروريزم ديوه نظام په توګه ددموکراسۍ له نوموړي راتګ څخه په ۲۸ کلونو کې سياسي قدرت ته په رسېدو، دخپلو انقلابي تيوريو دعمل ناکامه مظاهره وکړه.

په افغانستان کې دننني دريم سياسي قوت په بڼه کې دملي جريان تيوري په نورو ځانګړتياو برسيره، د«سياسي استقلال» او «ملي حاکميت» په دوو ډېرو مهمو بنسټونو له کمونستي او اسلامي راډيکاليزم څخه بيلېږي:

* «سياسي استقلال» دملي جريان يو داسې ملي ارزښت دی[۵۰] چې داجريان پخپلو کې ددوو سره ورانو «استعماري» نظامونو، کيڼ کمونستي او ښي اسلامي راډيکاليزم نه ديوه «خپلواک» نظام په توګه بيلوي؛

* «ملي حاکميت» په يوه ملي جريان کې يو داسې بل بنستيز ارزښت دی چې دخداي (ج) له حاکميت نه وروسته دخلکو دمسلم حق په توګه دهغه منل[۵۱] نه يوازې ملي جريان دکمونستي او اسلامي راډيکاليزم دترور او دکتاتورۍ له دوو نظامونو نه بيلوي، هغه ته يوه دموکراتيکه پيژندنه هم ورکوي؛

* دموکراسي، پارلماني سيستم او انتخابات، دسياسي ګوندونو تعدد، دبيان، عقيدې او عبادت آزادي[۵۲] دملي حاکميت عملي چارې دي چې ملي جريان ته دننني دريم قوت په بڼه کې ملي اعتبار او مشروعيت ورکوي؛

* افغانستان دیو خپلواک، افغان او اسلامي هیواد په توګه اودافغانستان دولت چې دبنسټ ډبره یې اعلیحضرت احمد شاه بابا ایښودې ده، یو « افغان » دولت منل [٥٣] دملي جریان نورې بنسټیزې نښې او غوښتنې دي.

* برسېره په دې، ددولت « افغاني » هویت ته په احترام سره په افغان سیاست کې ، په هره سطحه چې وي، پرته له قومي، ژبني، مذهبي او سیمه ییز توپیر څخه دټولو قومونو برخه اخیستل او دهغوی دحقوقو خوندي ساتل، ددریم قوت نورې غوښتنې دي [٥٤].

په افغانستان کې دیو موټي دریم قوت دنشتوالي له امله نشي کیداي ددې قوت بشپړه تیوري توضیح شي. خو، له ١٩٦٤ څخه، ددې قوت دجوړوونکو توکو توضیح او تشریح به دلومړي قوت دماتېدو (١٩٩٢) نه وروسته، په هېواد کې دذعامت د راغلې ننني سیاسي خلا دډکولو لپاره ددې قوت بالقوه او بالفعل استعداد څه ناڅه روښانه کړي.

# د دریبم قوت جوړوونکي توکي

## ۱-افغان ملت:

افغان سوسیال دموکرات گوند (افغان ملت) Afghan Social Democratic Party (Afghan Mellat) د ۱۹٦٦ کال د مارچ په اتمه نېټه منځ ته راغی[٥٥]. ددې گوند ډیر مهم او ستراتېژیک شعار «یوموټی، پرمختللی، او لوی افغانستان»[٥٦] ؤ. دا گوند چې دلوی څښتن د حاکمیت نه وروسته د ملت په حاکمیت عقیده لري[٥٧] دسیاسي دموکراسۍ، پارلماني سیستم او انتخاباتو غوښتونکی دی[٥٨]. په عمومي ډول ددې گوند اساسي سیاسي او اقتصادي غوښتنې د دموکراسۍ دلسیزې نه راواخله تر ۱۹۷۸ کال پورې «لوی افغانستان» او «سوسیال دموکراسي»[٥٩] وه.

افغان ملت د دموکراسۍ دلسیزې د دریبم قوت یوازینی ژوندی پاتې شوی سیاسي جریان دی. د دریبم قوت دې جریان تر ۱۹۷۸ کال پورې دافغانستان په ښاري او کلیوالي نفوس کې څه ناڅه ایډیالوژیک جلب وجذب وکړ. په دې لسیزه کې په افغانستان کې د دریبم قوت مورچل همدې گوند ونیوه.

دلوی افغانستان دډیرې درندې ملي غوښتنې په پرتله ددې گوند سازماني او تشکیلاتي نظم او ضبط، چې تر ننه ددې گوند بنسټیزه ستونزه ده، ډېر کمزوری ؤ. په دې برسیره، دیوې عاملې رهبرۍ نشتوالی او کورنۍ ډلبازۍ ددې گوند دسیاسي او تشکیلاتي پرمختگ نور اساسي خنډونه دي.

دافغان ملت د «لوی افغانستان» ملي غوښتنه که په افغانستان کې دشلمې پېړۍ په دویمه نیمایي کې دخلکو دتاوده هرکلي سره مخامخ شوه؛

خوپه سیمه ییز کچ یې په افغانستان کې ددریم قوت دې اساسي توکي ته ستراتیژیکی ستونزې وزیږولې اوداگوند یې د پخواني شوروي اتحاد ، ایران او په تېره بیا د پاکستان په دښمنۍ ککړ کړ. په ۱۹۸۰ کال کې ددې گوند دیوه مشر له خوا په نوي ډهلي کې، دکابل حکومت په وړاندې دیوه جلا وطن حکومت دجوړېدو خبرې داگوند لاد پاکستان په دښمنۍ واړاوه.

ددې گوند نشراتي اورگان افغان ملت د ۱۹۶۹ کال دجون دمیاشتې په خپله دریمه گڼه کې له شوروي اتحاد نه د « پنجده » سیمه بېرته وغوښتنه [۶۰].

په ۱۹۶۶ کال کې دې گوند د « آزاد پښتونستان » غوښتنه وکړه [*۶۰].

سره لدې چې « لوی افغانستان » او « آزاد پښتونستان » دوه نامترادف سیاسي واقعیتونه دي خوبیاهم ددموکراسۍ په لسیزه کې « افغان ملت » د دریم قوت په توگه دلوی افغانستان غږ پورته کړ. ښایي د « پښتونستان مسئله » په هغه دوره کې دافغانستان ددولت او افغان ملت گډ غږو. خو ، « لوی افغانستان » یوازې د « افغان ملت » غوښتنه وه.

« افغان ملت » پدې اړه په ۷۸-۱۹۷۳ دوره کې غلی پاتې شو. له ۱۹۷۸ نه را وروسته د پښتونستان مسئله نور ددې گوند دسترو سیاسي غوښتنو په سرلیکونو کې رانغله. دافغان ملت دگوند د ۱۹۹۷ کال خپرې شوې مرامنامې د پښتونستان مسئلې ته په دې ډول گوته نیولې ده: « دسیمې دهېوادونو ځینې سرحدونه داروپایي استعمار دلاسوهنې په اثر متضرر شویدي اوپدې اساس په دې سیمه کې دځینو هیوادونو ترمنځ اساسي اختلافات شته دي [۶۱]. په هرحال، دپښتونستان دمسئلې په سرله دې گوند سره د پاکستان تاو تریخوالي هم په خپل وار په افغانستان کې ددریم قوت مورچل ورانه کړې ده.

دا دریم قوت برسېره پر افغانستان، دلته په پاکستان کې هم له ۱۹۷۸ څخه راپدې خوا تر همدا ننه دډېر سخت سیاسي ، اقتصادي فشار لاندې راغلی دی. ددې گوند ډېر مهم غړي زنداني، اعدام، ورک او ووژل شول. دې کار په افغانستان کې داسلامي بنسټپالنې دپیاوړي کېدو او دملي جریان له کمزوري کېدو سره ډېره مرسته وکړه.

# لومړۍ برخه

**سابقه:**

په افغانستان کې د دموکراسۍ لسيزې (۷۳-۱۹٦٤) په يوه خام ذهني- سياسي چاپيريال کې درې ډوله بېل بېل سياسي جريانونه: د کينو اندېښنو جريان کمونستي راډيکاليزم، دافغانستان دخلکو د دموکراتيک گوند (خلق - پرچم) او شعله جاويد په بڼو کې دلومړي سياسي قوت ، اسلامي بنسټپالنه او راډيکاليزم داخوان المسلمين په بڼه کې د يوه ښې دويم سياسي قوت او ملي جريان دافغان ملت، مساوات او صداى عوام[۱] په بڼو کې د معتدل درېيم سياسي قوت په توگه وزېږول[۲].

پدې لسيزه کې درې واړو سياسي جريانونو دښکاره او پټ سياسي او ايډيالوژيک کار په نتيجه کې په ټولنه او دولت، په پوځي او ملکي، دواړو برخو کې څه ناڅه ريښې وځغلولې.

د ۱۹۷۳ کال په جولاى کې دافغانستان د پخواني صدراعظم محمد دداود خان (۱۹٦۳-۱۹۵۳) [۳]. دکودتا په نتيجه کې د دموکراسۍ لسيزه پاى ته ورسېده. په نوي جمهوري دولت کې د پرچميانو دنفوذ په وجه هم ملي جريان او هم اسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم (اخوان المسلمين) ډېر سياسي تاوان وکړ. د پخواني افغان صدر اعظم محمد هاشم ميوندوال (۱۹٦۵- ۱۹٦۷) [۳*] په وژل کېدو (۱۹۷۳) ملي جريان ته ډېر تاوان واوښت.

ويلاى شو چې تر ۱۹۷۸ کال پورې درېيم قوت يا ملي جريان په عمومي توگه په يوه کمزورۍ او دوو يادو شوو ښيو او کينو سياسي جريانونو په يوه بشپړه سازماني بڼه فعاليت کاوه.

په ۱۹۸۲ کال کې دې ګوند دافغان بحران دحل لپاره دملي متحدې جبهې دجوړېدو وړانديز وکړ (۶۲).

په ۱۹۸۷ کال کې ؤ چې، دې قوت دافغانستان دمسئلې دسياسي حل بديل وړاندې کړ (۶۳). په ۱۹۸۹ کال کې يې دپاکستان په لاس دافغان بنسټپالو جوړ موقت ائتلافي حکومت يو غير ملي او ګوډاګی حکومت وباله (۶٤). داکار په هغه وخت کې داسلامي سخت دريځو دسخت عکس العمل سره مخامخ شو.

دمجاهدينو دراولپنډۍ دموقت ائتلافي حکومت په ترديد کې دافغان ملت له خوا دخپرې شوې رسمي اعلاميې په ځواب کې دګلبدين حکمتيار دحزب اسلامي نشراتي اورګان «شهادت» په شديد اللحنه اخطار (۶۵) دافغان ملت اوحزب اسلامي ترمنځ توده مطبوعاتي جګړه ونښته (۶۶). دې مسئلې په هغه وخت کې افغان ملت له سختو امنيتي ستونزو سره مخ کړ.

دکينو او ښيو افراطي قوتونو په ضد ددې ګوند فرهنګي مبارزې اوتبليغاتو ددريم قوت ديوبالقوه موقف غږ لېترلېږه ژوندی وساته. په ۱۹۸۸ کال کې دافغان ملت دګوند نشراتي اورګان «افغان ملت» په خپلو دولسمه، ديارلسمه اوڅوارلسمه ګڼو کې (۶۷) ددريم قوت دواقعيت په هکله ځنې يادونې وکړې چې داسلامي بنسټپالو او سخت دريځو له سخت عکس العمل سره مخ شوې. دهغه وخت دمجاهدينو د موقت ائتلافي حکومت نشراتي اورګان د «سباوون زېري» دافغان ملت جريدې دنومووړې ليکنې په ځواب کې دريم قوت په ډېر شدت وغانده (۶۸). په دريم قوت دافغان ملت دګوند اودراولپنډۍ دمجاهدينو دموقت ائتلافي حکومت ترمنځ هم يوه تونده مطبوعاتي جګړه ونښته. (۶۹)

له کمونستي اواسلامي راډيکاليزم اوبنسټپالنې سره دسياسي اوکلتوري لاس اچولو دتجربو له مخې نن سبا داګوند په افغانستان کې ددريم قوت د جوړېدو بالفعل نه، خو، يوځه ناځه بالقوه استعداد ګڼل کېدای شي.

په ټولنه کې ددې ګوند ايډيالوژيک نفوذ، دتشکيلاتي اوسازماني کړيو او ګوندي کدرونو شته والی په يوه بالفعل قوت باندې ددې ګوند دبدلېدو لپاره

دپاملرنې وړ بالقوه انرژي ده.

داګوند دګوندي مرکو، جرګه ګیو، جرګو اود تشکیلاتي ارتباط دسره نښتو کړیو له لارې له ښاري اوکلیوالي نفوس سره تړلی دی. د تېرو دري دېرش کلونو راهیسې دې ګوند په پښتنو سیمو کې ډېر جلب اوجذب کړی دی. دې ګوند په ۱۹۸۸ کال کې په غیر رسمي ډول دخپلو غړو شمېر اوه دېرش زره تنه وښود (۷۰). خو داعدد ددې ګوند دغړو اصلي شمار نشي ښودلای. په پېښور کې ددې ګوند د ۱۹۹۰ او ۱۹۹۵ کلونو په دوو ګوندي کنګرو کې دمتناسبې نمایندګۍ داصل له مخې دهرو لسو ګډون کوونکو کدري غړو په سر دیوه تن په ګډون دنوموړو کلونو په کنګرو کې په ترتیب سره ۳۹۰ (۷۱) او نږدې ۳۰۲ (۷۲) ګوندي کدرونو ګډون کړي وو. خو دا ارقام بیاهم ددې ګوند دغړو رښتینی شمېر نه ښیي.

سره لدې چې نننی غربي ډوله ګوندي دموکراسۍ ددې ګوند پرونی شرقي ډوله تشکیلاتي سیستم لاسست او خوزولی، بیاهم دشتو تشکیلاتي کړیو اوددې کړیو له لارې دګوند اوخلکو ترمنځ څه ناڅه جوړه ارتباطي شبکه دننني دربیم قوت په نورو جوړوونکو توکو کې له سره نه لیدل کېږي. ددې ګوند تشکیلاتي او سازماني شبکې ته نوې ساه ورکول اویاهم له بېخ اوبنسټه دیوه وسپنیز تشکیلاتي او سازماني جوړښت منځ ته راوستل نه یوازې ددې ګوند، بلکې ددریم قوت دجوړېدو لپاره ارزښت لري.

**۲-یوه ایډیالوژیکه هسته:**

ددریم قوت په بېخ او بنسټ کې به دیوې ایډیالوژیکې - سازماني هستې شته والی، په یوه سره اوبدلې سیاسي - پوځي قوت باندې ددریم قوت په بدلولو برسېره، ددې قوت درښتیني بالفعل استعداد ضمانت هم وکړي.

دریم قوت کېدای شي دشکل له مخې یوه ائتلافي بڼه ولري. خو، دماهیت له مخې باید یو ایډیالوژیک قوت وي. دیوه ایډیالوژیک نظام دنشتوالي په صورت کې به ددې قوت مهم جوړوونکي توکي په پوچو کارتوسو بدلیږي. بیا به داسلامي تسبتیالنې اوسخت دریځو دراغورځولو له پاره ددریم قوت بدیل ډومره کمزوری شي چې بیا رغونه به یې دمشرۍ

دډېرزور بحران سره مخ وي.

يوپياوړی او له سره په يوه سازماني بنسټ سنبال افغان ملت کېدای شي ديوه بالفعل دريېم قوت دايډيالوژيکې سازماني هستې کار ورکړي. ددرېيم قوت په ټولو جوړوونکو بالقوه سياسي توکو کې افغان ملت دمبارزې ددري ډېرش کلنې تشکيلاتي، سياسي او ايډيالوژيکي سابقې له مخې ددې دندې يومناسب توکی دی.

افغان ملت په افغان بحران کې ددرېيم قوت دجوړوونکو له ننيو توکو سره ان له پرون او آبل پرون نه اشنا پاتې شوی دی. افغان ملت له هرچانه مخکې دافغان بحران دحل لپاره ددرېيم قوت دجوړېدو وړانديز کړېدی. افغان ملت تل له باچا او پير سره ښه رابطه درلودلې او په افغان بحران کې يې دلويې جرګې اوباچارول تائيد کړی دی. داخو افغان ملت و چې له روسي پوځ او په کابل کې يې دخلق - پرچم له حکومت سره دجګړې دپيل په کلونو کې دپير محاذ ته پوځي او تشکيلاتي اوږه ورکړه. پير ښايي داواقعيت هيڅکله له ياده ونه باسي. ددرېيم قوت دجوړېدو په لاره کې به دپير دروحاني او ديوه موټي افغان ملت دسازماني - ايډيالوژيک قوتونو التقاطي هلې ځلې په هرحال ددرېيم قوت په ګټه تمامې شي. خو، ديوه شيندلي ننني افغان ملت په صورت کې به دا ګټه يوازې دمحاذ وي.

افغان ملت لومړی په ٧٣-١٩٦٤ دوره کې، بيا په ٩٢-١٩٧٨ او بيا آن ترننه پورې دباچا په ضد کوم سياسي فعاليت نه دی کړی. په ٧٣-١٩٦٤ دوره کې دافغان ملت مبارزه دوخت دحکومتونو په ضد وه. نوباچا ښايي ديو بالفعل دريېم قوت په جوړېدو کې دافغان ملت په اهميت او افغان ملت ته دخپل ضرورت واقعيت درک کړی وي. باچا بايد په خپل وجود کې ددرېيم قوت دجوړيدو په اهميت، بيا ديوه سازماني - ايډيالوژيک قوت په توګه ددې قوت دجوړېدو په ضرورت او اهميت او بيا هم افغان ملت ته ددې سازماني او ايډيالوژيکي جوړونې ددندې دورسپارلو په ضرورت پوه وي.



## ۳-ددرېيم قوت دتصوف اړخ

پېژ:

تصوف په افغانستان کې د اسلام د ټولنيزې ستنې رول لوبولی دی[۷۳]. دتصوف دنقشبنديه او قادريه دوه پياوړې څانګې په افغانستان کې د پېړيو پېړيو راهيسې له دولتي رسمي موسساتو نه آزادې خوپياوړې ولسي موقف لري. همدې پياوړتيا افغان دولتونه دروللي اوغورځولي دي. په ۱۹۲۹ کې دشاه امان الله ددولت په غورځولو، او ور پسې دسقاو دزوي او محمد نادر خان (۳۳-۱۹۲۹) دحکومتونو په درولو کې دنقشبنديه طريقې دمشر حضرت شوربازار (مجددي) دفتوې ګانو لاس و[۷٤].

دولتونو په ټولنه کې دروحانيت دبښخښن نفوذ له مخې هغوی ته دمهمو دولتي پوستونو په ورکولو دهغوی ننګه تر لاسه کوله. ددموکراسۍ دلسيزې نه مخکې دباچا په سلطنت کې روحاني کورنيو، مشرانو او ساداتو په سلو کې ٤،٦ او پدې لسيزه (۷۳-۱۹٦٤) کې په سلو کې ۳،۳ غټې دولتي پوستونه اخيستي وو[۷۵].

دافغانستان دملي اسلامي محاذ National Islamic Front of Afghanistan دمشر پير سيداحمد ګيلاني کورنۍ دقادريه او دافغانستان دنجات دملي جبهې National Liberation Front of Afghanistan دمشر صبغت الله مجددي کورنۍ دنقشبنديه طريقې مشري لري. ددې دوو مشرانو ببخښن روحاني شخصيت دلته په پاکستان کې ددوی د تنظيمونو په جوړولو کې لدوی سره مرسته وکړه.

دخلق-پرچم حکومت او روسانو سره دجګړې په دوره (۹۲-۸۸-۱۹۷۸) کې ددرېيم قوت موقف پدې دوو تنظيمونو ونيول شو. خو دحضرت «جبهې» په افغانستان کې ديو رښتيني درېيم قوت سياستونو ته انعکاس ورنکړ. داتنظيم د «محاذ» او دمولوي محمد نبي محمدي د «حرکت انقلاب اسلامي افغانستان» په څېر ددرې ګوني اتحاد (منځ مهالي اتحاد) غړی و. حضرتان، دحضرت مريدان، پخواني بيروکراتان، ولسي مشران او يو شمېر روښانفکران دحضرت دتنظيم غړي وو.

حضرت یو اخواني ډوله په اصطلاح معتدل روحاني مشرؤ. سره لدې چې افغان اسلامي بنسټپالو پرې هېڅکله هم سیاسي اعتبار نه درلوده. خو، ده تل په افغان بحران کې د ملي جریان مخه نیوله. د «پیر» او «محمدي» په څېر، «حضرت» هم په افغانستان کې دشرعې دانفاذ غوښتونکی اود افغانستان دمسئلې په حل کې یې د پخواني باچا محمد ظاهر رول تائیداوه. په همدې ډول یې، د پیر غوندې، افغان سیاست ته د «شاه» نه، خود مشرۍ په رول کې دهغه دبیا راستنېدو غوښتنه هم کوله[٧٦]. خو په ۱۹۹۲ کال د مجاهدینو د اسلامي دولت مشرۍ ته په رسېدو یې پخواني باچا له یاده ووت.

داسلامي بنسټپالنې په ګټه او د ملي جریان په ضد، حضرت له افغان ملت سره جوړ نه و. په ۱۹۸۹ کال کې د راولپنډۍ د مشورتي شورۍ د موقت ائتلافي حکومت او په ۱۹۹۲ کال کې د پېښور د تړون په اساس په کابل کې د مجاهدینو د اسلامي دولت د مشر په تړاکل کېدو سره، اسلامي بنسټپالو او سخت دریځو دې ډیرښه د ملي جریان په ضد استعمال او درېیم قوت یې د ده په بنه کې نوم بدي کړ.

حضرت اوس د کوم تنظیم خاوند ندی. دده تنظیم هم د ۱۹۹۲ کال نه راپدې خوا له منځه لاړ دی. حضرت د درېیم قوت په جوړولو کې مثبت نه، خو منفي رول لوبولی شي. د حضرت روحاني نفوذ د پخوا په پرتله ډېر راښکته شوی دی. په سیمه کې په عمومي توګه د تصوف د نویو مرشدینو په راپیدا کېدو سره د تصوف لرغوني پیران او مشران کرار کرار خپل لرغوني نفوذ له لاسه ورکوي. خو، په عمومي توګه د افغان ټولنې د محافظه کارې روحاني طبعې له مخې ښایي حضرت د درېیم قوت د کومې پرزې ځای ونیسي.

د افغانستان ملي اسلامي محاذ د افغان سیاست په ۹۲-۱۹۷۸ دوره کې د یوه بالقوه درېیم قوت یو محافظه کار ممثل، په پاکستان کې د جوړو شوو تنظیمونو د درې ګوني اتحاد غړی او له ۱۹۹۲ کال نه راپدې خوا د یو درېیم بالفعل قوت د جوړولو له محرکینو څخه په اصطلاح یو محرک دی.

داخو د درې ګوني اتحاد د یوه وتلي غړي په توګه د محاذ په وجود کې هم و چې، د زښته ډېرو پوځي، سیاسي امکاناتو سره سره، بیا هم درېیم قوت

دافغان بحران په ۹۲-۱۹۷۸ دوره کې بالفعل نه بلکې یو بالقوه قوت پاتې شو. خوهم یې په دې اوهم یې په ۹۷-۱۹۹۲ دوره کې، یعنې په کابل کې یې دخلق-پرچم دحکومت تر سقوط اوبیا دطالبانو تر پوځي- سیاسي عروجه پورې دیوه بې زړه او محافظه کار سیاست په لوبولو دافغان بنسټپالو په تېره بیا په کابل کې دشمال ائتلاف دحکومت په ترکیب کې په پاتې کېدو یې، ددرېیم قوت اوبه داسلامي نژادګر راډیکالیزم په ژرنده تويې کړې. محاذ، تر ډېره څه چې، ښکاري، ان تر ننه، دشمال ائتلاف دسیاستونو سره کوم ځانګړی او ښکاره اختلاف سره لدې چې نه ښیي، ددې ائتلاف دسیاستونو ښکار شوی هم دی.

سره لدې ټولو، محاذ دپیر په وجود کې په افغانستان کې دیوه ربښتیني، غیر روحاني، مسلمان او ملي جریان دقحط الرجال په نتیجه کې هم پرون اوهم همدانن ددرېیم قوت یو مهم بالقوه توکی پاتې شویدی. له همدې کبله پیر سیداحمد ګیلاني برسېره پرخپل روحاني نفوذ، دیوه ملي رسوخ څخه هم برخمن دی.

دمحاذ غړي هم دافغان پخوانیو دولتونو بیروکراتان او لوړ رتبه مامورین، متقاعد پوځیان، مخور ولسی مشران، پخپله دپیرصاحب باسواده اوبې سواده مریدان او یو زیات شمېر روښانفکران دي. محاذ کوم ځانګړی ګوندي تشکیل نلری. په ۱۹۹۲ کې هڅه وشوه چې دافغان ملت داساسنامې له مخې په محاذ کې یو ګوندي ډوله تشکیلاتي سیستم منځ ته راشي. خود محاذ ځینو ولسي او لیبرال ډوله مشرانو داحرکت په ښنو وواهه.

## ٤- ددرېیم قوت مذهبي اړخ:

مولوي محمد نبي محمدي دپخواني باچا دپارلمان غړی یوسنتي اونیمه معتدل ملادی، چې له ۱۹۷۸ کال نه یې په پاکستان کې دافغان جهادي اوو تنظیمونو په ترکیب کې دخپل تنظیم «حرکت انقلاب اسلامي افغانستان» مشري کوله. دده تنظیم لومړی دغیر بنسټپالو، منځمهالو، سنتي اوغیر سیاسي ملایانو نه جوړ شوي و. خو پدې تنظیم کې پرته په چنې، چټ، طالب، ملا، مولوي، مولانا اوشیخ الحدیث، چې دده دتنظیم اصلي کارکونکي وو،

څه ناڅه سيکولر او دعقلي علومو فارغان هم ليدل کيده. د «محمدي» حرکت ددرې ګوني اتحاد دغړي په توګه دافغان بحران په ۹۲-۱۹۷۸ دوره کې له روسانو او خلق-پرچم سره په جګړه کې ددرېيم قوت ديوه توکي ځاي نيولی و.

په ۱۹۹۲ کال، په کابل کې د جهادي تنظيمونو داسلامي دولت په جوړېدو سره دهغه تنظيم دصبغت الله مجددي اوبرهان الدين رباني په واکمنيو کې دوزارت څوڅوکۍ لاس ته ور وړې. له ۱۹۹۲ کال نه را وروسته په افغانستان کې دقدرت په سر په خپلو کې د اسلامي سخت دريځو اوبنسټپالو په لويدلو سره هغه زيات زيات درباني په خواو. هغه يو، نيم غوندې محافظه کار ملا دی، چې دسياسي تصميم نيونې اوابتکار استعداد، صلاحيت او جرئت نلري.

ديوه بنسټپال خو غير (اخواني-وهابي) او ديوه معتدل خو غير سيکولر، له بنسټپالو سره دشرعي دانفاذ او له سلطنت غوښتونکو سره د «سلطنت او اسلام» په منځ کې دتوافق په سر ديوه جوړ[۷۷] ملا په توګه پخپله محمدي اوياړنور ښه معتدل ملايان او علماي کرام(Ulema)ددرېيم قوت ديوه توکي په توګه: په افغان سياست کې ددرېيم قوت دمذهبي اړخ دږ کولو، ددې قوت په فتوی ګانو د مذهبي مهردلګولو اودبنسټپالنې اوسخت دريځۍ په خوله دبرغولي اېښودلو لپاره له نظره نشي غورځېدلای.

له ۱۹۷۸ راهيسې دکليوالي افغاني اوپاکستاني مدرسو دنيمه باسواده فارغانو نه نيولې ددې ملايي تنظيم پوره باسواده ملايانو ورو دسياسي اسلام اوبه وچنبلې. ددرېيم قوت ديوه مذهبي توکي په توګه له اتيايمې لسېزې راهيسې د يوزيات شمير طالبانو اوملايانو په روزلو، دې تنظيم دطالبانو دبنسټپال اسلامي تحريک دننني پرسونل په برابرولو کې لوی لاس کړی دی. دطالبانو دمخالفينو په وړاندې دطالبانو دلا پياوړي کولو او هغوی ته دسياسي اعتبار په خاطر دلته، لکه مولانا فضل الرحمن، مولانا سمیع الحق اودوی ته د ورته نورو پاکستاني سياسي ملايانو په هلو ځلو اودطالبانو دنورو پلوي شبکو دنفوذ له مخې داتنظېم په ۱۹۹۷ کې طالبانو ته تسليم شو.

## ٥-لویه جرگه:

جرگه د پښتونولۍ یو عمومي قانون دی. د پښتونولۍ یوزیات شمېر مقررات د جرگې له لارې عملي کېږي. جرگه د مقننه، قضائیه او اجرائیه قوې په توگه [٧٨] دافغاني ټولنې سیاسي کلتور گرځېدلی دی.

جرگه داشخاصو له خپلمنځي شخړو نه نیولې، د کورنیو، خېلونو او قومونو مسایل پرې کوي. کوچنۍ جرگې یامرکې کوچنۍ او لویې جرگې سترې ملي ستونزې حل کوي.

جرگې دیوه دولتي شوي رسمي ځواک په توگه په افغانستان کې د دولتي قدرت د عنعنوي مثلث په یوه راس کې ان تر ١٩٩٢ کال پورې لاځای درلوده. مشرانو جرگه (Senate) او ولسي جرگه (National· Assembly) په افغانستان کې د ملي پارلمان (National Parliament) یامقننه قوې د دوو جوړوونکو توکو په توگه په افغانستان کې د عنعنوي مرکو او جرگو یوه پرمخللې او دولتي شوې بڼه ده [*٧٨]. برسېره پر دې، دلویې جرگې په غونډو کې په پارلمان او قضائیه قوې د دوو گډون کوونکو غړو په توگه برخه اخیستله [٧٩].

پدې مانا چې جرگه دیوه بهرته پاتې او قبایلي ژوند دیوې پدیدې په توگه نه، بلکې دیو ټولنیز او سیاسي کلتور په توگه د پخوانیو آریایانو نه نیولې د پرمختگ او تمدن سره اوږه په اوږه ترمونږ رارسېدلې ده.

دافغانستان د ١٩٦٤ کال داساسي قانون په ٤٥ ماده کې لویه جرگه دافغانستان د خلکو دستر قوت، واک او ارادې ښکارندویه موسسه وگڼل شوه [٨٠].

په عمومي توگه په تېرو شه باندې دوه نیمو پېړیو کې (١٩٧٦-٩٠٧١) شل لویې جرگې په افغانستان کې داساسي قوانینو د جوړولو، تصویبولو، دافغان دولتونو د تاسیسولو او نورو ملي ستونزو د حل لپاره تدویر شوېدي [٨١].

په بدو او سختو ورځو کې د تصمیم نیولو دیوې باصلاحیته ملي موسسې په توگه لویې جرگې دافغانستان په سیاسي تاریخ کې مهم رول لوبولی دی.

د معاصر ملي تاریخ دځو لویو جرگو مثالونه خپله په خپله نن سبا لویې جرگې ته د دریم قوت په جوړولو کې بیا هم دیوې ملي باصلاحیته موسسې

حیثیت ورکوي: دکندهار په مانجه کې په ۱۷۰۹ کال دمیرویس نیکه لویه جرگه له صفوي استعمار سره دمقابلې او افغان دولت دجوړولو لپاره شوې وه [۸۲]. د ۱۷٤۷ کال لویې جرگې احمدشاه بابا دافغانستان باچا وټاکه [۸۳].
د ۱۹۲٤ کال لویې جرگې دهیواد اساسي قانون تصویب کړ [۸٤]. د ۱۹۲۸ کال لویې جرگې دوخت د دولت پرمختیایي پروگرامونه تصویب او تائید کړل [۸۵].
همداراز د ۱۹٤۹ کال لویې جرگې دافغانستان او پاکستان ترمنځ دسرحدي اختلافاتو په اړه دافغانستان د دولت دسیاستونو ننگه وکړه. همدې لویې جرگې د ۱۸۹۳ کال دډیورنډ تړون، دافغان او انگریز د ۱۹۰۵ او ۱۹۲۱ کلونو تړونونه او د ۱۹۱۹ کال دراولپنډۍ تړون او نور ټول هغه تړونونه فسخ کړل کومو چې دافغانستان او پاکستان ترمنځ په متنازع فیه ځمکو اړه درلوده [۸٦]. په ۱۹۵۵ کال کې لویې جرگې بیاهم د افغانستان او پاکستان ترمنځ دسرحدي اختلافاتو په هکله دافغانستان د دولت سیاستونه تائید کړل [۸۷]. د ۱۹٦٤ کال لویې جرگې دهمدې کال دهیواد مشهور اساسي قانون تصویب کړ [۸۸]. دمنځ مهالو جهادي تنظیمونو په گډون افغان مهاجرو په پاکستان کې په ۱۹۸۰ او ۱۹۸۱ کې په ترتیب سره په پېښور او کوټه کې دافغانستان دمسئلې دحل لپاره دوه ممثلې لویې جرگې [۸۹] تدویر کړې. (دا ممثلې لویې جرگې دپاکستان دحکومت او افغان بنسټپالو جهادي تنظیمونو دسخت عکس العمل سره مخ شوې.)

**لویه جرگه او نننی افغان سیاست:**

داچې پخوا به (۱۹۷۸ نه وړاندې)، دلویو جرگو گډون کوونکي معلوم ؤ نو دا باالقوه قوت به په آسانۍ سره په آنې ډول په یو بالفعل قوت بدلیده. دټولنې دهغه وخت دقومي جوړښت او شتوټولنیزو حاکمو فیوډالي، نیمه فیوډالي مناسباتو په بنسټ به په ملي کچ ددولتونو له خوا دلویو جرگو په تدویر کې دگډون کوونکو د «حقانیت» او «مشروعیت» سوال حل و. په دې برسېره، دلویو جرگو دپریکړو تعمیل به هم دهیڅ ډول مشکل سره ځکه نه مخ کېده چې، جرگه ماران به دقضائیه قوې په حیث دقضایي واک، دمقننه قوې په حیث دستر قانوني واک او داجرائیه قوې په حیث به دغټ اجرایي واک لرونکي وو. خو اوس چې جگړې دافغانستان دټولنې قومي جوړښت مات او سره خوزولی

دی، نو دجرګې « مشروعیت » ، دجرګه مارانو د « ټاکل کېدو » شرایط، اوبیا دجرګې دپریکړو د « عملي کولو » خبره دسوال سره مخ ده. داسلامي بنسټپالنې په سیاسي او ایډیالوژیک نفوذ برسیره چې په ټولنه کې د « سیاسي کلتور دیوې مهمې موسسې » (۹۰) په حیث دلویې جرګې په ځای یوشمېر اخواني -وهابي شوې بانفوذه څېرې، وسله وال اوسیاسي ملایان نن سبا د « حل وعقد » دشورا غیر افغاني او نا آشنا بدیل وړاندې کوي، په ټولنه کې دجګړې دمنفي عواقبو په نتیجه کې د نفوذ دعنعنوي اوپخوانیو محلي ستنو اوشخصیتونو دلویدلو اویا یې په څنګ کې ددې ډول نویو څېرو په منځ ته راتللو سره، دجرګه مارانود ټاکلو مسئله له یوې اودجرګې دحرکت د « عاملینو » (۹۱) دټاکلو مسئله له بلې خوا یوه جنجالي موضوع ګرځېدلې ده.

داسلامي بنسټپالو له دغه ډول کلتوري اوسیاسي نفوذ سره سره، بیاهم په « نظري » توګه دلویې جرګې قضایي، تقنیني اواجرایي قوت خوندي پاتې دي. خو، په « عملي » ډول، سره لدې چې دافغانستان دخلکو اکثریت، روښانفکره قشر، یوزیات شمېر معتدل ملایان،قومي مشران، اومخور شخصیتونه، پخواني بیروکراتان او نور دافغانستان دمسئلې دحل دلویې جرګې بدیل وړاندې کوي، بیاهم ددې جرګې تدویر، دتدویر ځای اودجرګې دپریکړو دتطبیق په لار کې ښکاره بنسټیزې ستونزې اوخنډونه شته دي، چې په هېڅ ډول له نظره نشي غورځېدلای. همدلته ده چې، دڅو پرله پسې هڅونه وروسته دلویې جرګې دتدویر په هکله حتی ډېر لومړني مثبت نتایج هم لاس ته رانغلل. خو، د « نظري امکاناتو » او « عملي ستونزو » له شته والي سره سره، دلویې جرګې تدویر نه « اسان » اونه خو هم « نه کېدونکی » کاردی.

دیوې بریالۍ لویې جرګې په لارکې لېترلږه درې اساسي ستونزې شته: یوه افغان یوه دجرګې دموثریت په اړه دجرګې« مشروعیت یاحقانیت » اود جرګې« دپریکړو تعمیل » ددوو مهمو ستونزو په توګه ګڼلې دي (۹۲) . خو، پدې دوو ستونزو برسېره پخپله دجرګې دحرکت د « عاملینو » ټاکل هم درېیمه ستونزه ده. همدا درې ستونزې دیوې بریالۍ لویې جرګې په لار کې پراته ښکاره اولوڅ خنډونه دي. دجرګې دتدویر ځای، مالي ستونزې، نور اونور هغه

په ۱۹۷۸ کال کې د کيڼ قوت له خوا د سياسي قدرت په نيولو په افغانستان کې ښي قوت (اسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم) ته د پوځي، سياسي، سازماني او ايډيالوژيک نفوذ ښه چانس لاس ته ورغی. د عربو په مالي امکاناتو يو زيات شمېر نړيوال وسله وال گوريلايي اسلامي بنسټپالي او اخوانيان وپېرودل شول [٤] او په افغانستان کې د روسانو په ضد د جگړې په ليکو کې د خپلو افغان اخواني - وهابي بنسټپالو سره يو ځای شول. دې کار د پاکستاني او افغاني اخوانيانو په پوځي او گوريلايي روزنه کې ډېره زياته مرسته وکړه. په نتيجه کې په افغانستان کې د روس په ضد جهاد او د آزادۍ جگړه د اسلامي بنسټپالو د رهبرۍ لاندې په يوې بشپړې مذهبي جگړې بدله شوه. ملي جريان يا د دموکراسۍ د لسيزې معتدل غير وسله وال او کمزوری سياسي سازمان (دريم قوت) په بشپړ ډول په دې جگړه کې د اسلامي بنسټپالنې او کمونستي راډيکاليزم د سياسي، ايډيالوژيک او پوځي واړ لاندې راغی.

افغان ملت له اسلامي بنسټپالو او کمونستانو سره په جگړه کې له يوې خوا، د پښتونستان د مسئلې په سر له پاکستان سره دوراني په وجه او هم د يوې عاملې رهبرۍ د نشتوالي له کبله له بلې خوا د سخت سياسي فشار لاندې راغی او سياسي ډگر په بشپړه توگه اسلامي بنسټپالو ونيوه. په ۱۹۸۰ کال کې د پاکستان له خوا يوازې اوه افغاني جهادي تنظيمونه په رسميت وپېژندل شول. په ۱۹۸۱ کې درې گونی اتحاد د منځ مهالو او څلور گونی اتحاد د بنسټپالو افغان جهادي تنظيمونو نه جوړ شول. په درې گوني اتحاد کې د تصوف د نقشبنديه او قادريه طريقو مشرانو حضرت صبغة الله مجددي او پيرسيد احمد گيلاني او منځ مهالی ملا، مولوي محمد نبي محمدي او په څلور گوني اتحاد کې د سياف اسلامي بنسټپالني، د برهان الدين رباني او گلبدين حکمتيار اخواني تنظيمونو او سخت دريځي ملا، مولوي محمد يونس خالص ځای ونيو.

په ۱۹۹۲ کال، «لومړي قوت» د خلق - پرچم په وجود کې د دويم قوت (اسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم) نژادگر اړخ (شمال ائتلاف) ته په تسليمېدو سره، د اسلامي بنسټپالنې خپل منځی فرکسيونيزم لا پياوړی او ژور کړ. پر ته

ټکي دي چې باید په نظر کې ونیول شي. په کار ده ، له اوسني بحران څخه ددریم قوت په بدیل دافغانستان دایستلو لپاره ددې قوت شته بالقوه امکانات هر یو په خپل ځای اوښه استعمال شي. نو دلویې جرګې عاملین باید ددریم قوت دیوه پیاوړي توکي په توګه لویه جرګه نوم بدې نکړي.

په بالفعل قوت باندې داوسني شته بالقوه دریم قوت دبدلولو لپاره باید په افغانستان کې ددې قوت ټول بالقوه توکي په بالفعل قوتونو بدل شي. دشته بالقوه توکو څخه یوه هم لویه جرګه ده . دلویې جرګې دحرکت په عاملینو اتفاق، دلویې جرګې په ګډون کوونکو یوه خوله کیدل اودلویې جرګې دپریکړو دعملي کولو لارې چارې په بالفعل قوت باندې ددې بالقوه توکي بدلېدل دي.

په بالفعل قوت باندې دلویې جرګې دبدلېدو په لار کې تراوسه څه ناڅه ناکامې هڅې شویدي:

دلویې جرګې دحرکت لومړۍ هڅه په اسلام آباد کې د۱۹۹۷ کال دجولای په میاشت کې دڅه ناڅه اتیاتنو مخورو افغانانو، قومي متنفذینو ، روحاني شخصیتونو، دیني عالمانو، جهادي قوماندانانو، او دلوړو زده کړو خاوندانو په غونډه پیل شوه.

په بالقوه اوبالفعل حالت باندې د جرګې دحرکت دعاملینو په پوهه باندې، چې ګواکې دجرګې عاملینو به دلویې جرګې ټول لومړني پړاوونه، دهغې دبالقوه استعداد څېړل اوپه بالفعل قوت باندې دهغې دبدلېدو لارې ګودرې څېړلي وي اوبیا دې یې داحرکت له اسلام آباد نه پیل کړی وی، شک شته. اصلاً اسلام آباد دلویې جرګې دحرکت دپیل ښه ټکی نه و. دښکاره معیارونو له مخې دګډون کوونکو نه رابلل دجرګې « مشروعیت » له بحران سره مخ کړی ؤ.

داسلام آباد له غونډې نه دوه اونۍ وروسته دشمال ائتلاف په ابتکار دجرګې عاملینو په فرانکفورت کې یوه بله دیارلس کسیزه غونډه جوړه کړه. داسلام آباد دغونډې دتخریب په دود دې غونډې دافغانستان د مسئلې لپاره دلویې جرګې په ځای دحل کومه بله لار لټوله[۹۳]. دفرانکفورت په غونډه کې دشمال ائتلاف په ګډون برسېره، دپخواني باچا استازي هم ګډون وکړ.

دفرانکفورت دغونډې مالي امکانات دیونیکال دتیلو امریکایي کمپنۍ

برابر کړي وو. ددې غونډې عاملين دقوماندان مسعود په بڼه کې شورای نظار، شمال ائتلاف يامتحده جبهه، يونيکال اودباچا استازی و.

لدې غونډې وروسته، په همدې کال دلويې جرگې دحرکت درېيمه غونډه په استانبول کې دشمال ائتلاف اويونيکال په گډمالي لگښت جوړه شوه(۹٤). دا غونډه هم دفرانکفورت دغونډې په څېر دلويې جرگې دحرکت په وړاندې يوه داسې کودتا وه چې شمال ائتلاف يې طراح، باچا اودجرگې وړاندېني عاملين يې کودتاچيان وو.

په قومي تعصب باندي داستانبول دغونډې ولاړ بنسټ، يوه هم دپښتنو له سيمو نه په انفرادي ډول دګډون کوونکو درابللو پريکړه وه نه دتنظيمونو، سازمانونو، قومي ياغير قومي ټولنو په نوم. داسې پريکړه چې له شمال نه يې گډون کوونکي دشمال ائتلاف په نوم رابلل(۹۵).

په لنډ ډول ويلاي شو، چې دلويې جرگې حرکت په افغانستان کې ددواړو جگړه مارو قدرتونو، دشمال ائتلاف دنژاد پالنې اودطالبانو داسلامي بنسټپالنې له خوا په پښو وهل کېږي: په يوځي بنسټ پياوړي، خوله سياسي پلوه کمزوري طالبان دلويې جرگې سياسي قوت دځان په ضد پياوړی گواښ گڼي او مسعود په ډېرمهارت، دځان په گټه دلويې جرگې دملي قوت داستعمال په لټه کې دی.

پدې ناکامواوياخامو هڅو برسېره، بياهم دشمال ائتلاف په ابتکار اودباچا داستازي په گډون د۱۹۹۸ کال دجولای دمياشتې دبن غونډه دجرگې دهمدې عاملينو له خوا د ۱۸۰ تنو په گډون جوړه شوه. دجرگې دحرکت داغونډه د «مشروعيت» په بحران برسېره، دتصميم اوپريکړو په بحران هم اخته وه.

داسې ښکاره دلايل لا نشته چې گواکې پورتنۍ ځلور هڅې دې دباچا دسږکال دروم دغونډې (جولای ۱۹۹۹) دازمينبت لومړنۍ غونډې وبلل شي. پدې مانا چې د درېيم قوت يو بالقوه توکی، لويه جرگه، به ددې قوت دبل باالقوه توکي، باچا، دبالفعل کولو لپاره په کار لوېدلی وي.

خو، قوماندان مسعود له خپل يوځي قوت سره، د نننې درېيم بالقوه قوت ددوومهمو توکو، لويې جرگې اوباچا، دسياسي زور په يوځاي کولو،

غواړي ددريم قوت بل پياوړی مخالف پوځي قوت ، دطالبانو متعصبه اسلامي بنستپالنه، په افغان سياسي ډگر کې يوازې او ميدان وگټي.

## ٦-پخوانی باچا:

٨٥ کلن باچا محمد ظاهر (١٩٧٣-١٩٣٣) په افغانستان کې ددريم قوت يوډير مهم غير پوځي، خو سياسي عنصر دی. ددريم قوت په نورو جوړوونکو توکو کې دباچا غوره والی، په افغان ولس کې تولوته دهغه منلی شخصيت اومحبوبيت دی. سره لدې چې، نن سبا په افغان سياست کې يو شمير دخيلې ، سياسي ، پوځي حلقې اوداسلامي بنستپالنې جگړه ماړپوځي قوت دباچا دبيارا گرځيدو سره جوړندي، خوبياهم باچا په عام ډول په پښتنو برسيره په غير پښتنو کې هم محبوبيت لري.

له سياسي پلوه دمحمد نادرخان دسلطنت (١٩٣٣-١٩٢٩) له پيل نه داسلام، افغانيت او تمدن يو (نامتناسب) ترکيب ددولت دايډيالوژۍ په توگه ومنل شو. دمحمد ظاهر دباچاهۍ په ټوله دوره کې دا ترکيب تعقيب اوبيا چې کله دسلطنت په وروستيو لسوکلونو کې دباچا لاس پياوړی شو، نو پدې درې اصولو برسيره دموکراسي هم ديوه مهم سياسي اصل په توگه ددولت په پورتنۍ ايډيالوژۍ کې ځای ونيو [٩٦]، همدلته ده چې «ملي گرايي» او«دموکراسي» دباچادسلطنت ميراث گڼل کيږي [٩٧].

په ١٩٧٣ کې و چې باچا ديوې پوځي کودتا په نتيجه کې له سلطنت څخه گوښه کړای شو. په ١٩٧٨ کې دخلق-پرچم دحکومت اوبيا په ١٩٧٩ کال په افغانستان باندې دروسانو د پوځي يرغل څخه راپدې خوا باچا کله کله په افغان سياست کې دبرخې اخيستلو يوه نيمه سياسي هڅه کړېده.

په پاکستان کې دافغان مهاجرو په کمپونو کې په ٢٠٠٠٠ کسانو کې دافغان اطلاعاتي مرکز Afghan Information Center (AIC) د١٩٨٧ کال ديوې عمرمي سروې له مخې دپخواني باچا ، دتنظيمونو دمشرانو او قوماندانانو پلويان په لاندې ډول وو [٩٨]:

-دپخواني باچا (محمد ظاهر) پلويان: ١٤٣٣ کسان (٦٥ , ٧١٪).

-دیوه خالص اسلامي دولت پلویان: ۲۵۰ کسان (۱۲،۵۰٪).
-دیوه مسلمان افغان (هرڅوک چې وي) پلویان: ۲۰۶ کسان (۱۰،۳۰٪).
-دجهادي قوماندانانو:
دمسعود، عبدالحق، فرید، حقاني پلویان: ۳۵ کسان (۱،۷۵٪)
دجهادي تنظیمونو مشران:
دپیر سیداحمد ګیلاني، مولوي محمدي، پروفیسر رباني، انجنیر حکمتیار او نورو پلویان: ۹ کسان (۰،۴۵٪)
هغو کسانو چې نظر نه ؤ ورکړی: ٦٧ کسان (۳،۳۵٪)
ټول ............... ۲،۰۰۰ کسان (۱۰۰ په سلوکې).
ښکاره ده چې، دباچا پلویان له ټولو زیات وو.
په ۱۹۸۱-۱۹۸۰ کلونو کې افغان مهاجرو دوه ځلې په پېښور او کوېټه کې، دمځلو لویو جرګو په ترڅ کې دافغانستان دبحران دسیاسي حل لپاره دباچا په بیا راستنېدو ټینګار وکړ[۹۹]. خود یوې محافظه کارې طبعې او دافغان بنسټپالو له خوا د جګړې دانحصار له وجې، باچا په افغان سیاست کې زیاته علاقه ونښوده.

باچا یوازې او یوازې او هغه هم کله کله دیو منځګړي په توګه دځینو اعلامیو په صدور په افغان سیاست کې خپل رول خلکو ته په یاداوه. خو، کله چې په ۱۹۹۲ کال دلومړي قوت (خلق-پرچم) دحکومت دسقوط نه وروسته په افغانستان کې دقدرت سیاسي خلا منځ ته راغله او دویم قوت افغان اسلامي بنسټپالي دسیاسي قدرت په سر په خپلو کې سره ولویدل، په افغان سیاست کې دباچا په رول اړوند ملي، سیمه ییز او نړیوال قوتونه لا ښه پوه شول.
په ۱۹۹٤ کال، دافغانستان پوځي - سیاسي ډګر ته دطالبانو په راتللو، دباچا نوم بیا را ژوندی شو. فکر کېده چې طالبان دباچا عسکر دي او باچا هم، وېل کېږي، په طالبانو غولیدلی و.
دافغانستان نشنلستانو او منځ مهالو قوتونو، دبېلو بېلو قومونو اکثرو مشرانو او عام ولس دباچا دبیا راستنېدو ضرورت وخت په وخت تائید کړیدي.

خو باچا کوم ځانګړی سیاسي - پوځي سازمان یوهم نه درلود. دري ګوني اتحاد، دافغان ملت ګوند، آزادو شخصیتونو،کوچنیو سیاسي کړیو اوسرچینو، ځینو سیمه ییزو اونړیوالو محافلو وخت په وخت له باچا سره تماس نیوه او هغه یې په افغان سیاست کې ونډې اخیستلو ته هڅاوه. خودباچا دهلو ځلو تېزوالی او مستقیمه برخه اخیستنه د ۱۹۹۷ کال داګست دمیاشتې په وروستیو کې، دطالبانو په لاس دجلال آباد دسقوط نه وروسته، افغانستان ته دهغه دراتګ په اعلان پیل اوبیا په همدې کال کې دلویې جرګې دحرکت دفرانکفورت او استانبول په دوو مقدماتي غونډو کې دهغه داستازي په ګډون تعقیب شو. سره لدې چې افغانستان ته دهغه دورتګ بې وخته اعلان له یوې خوا اوپه دوو نوموړو غونډو کې دهغه د استازي ګډون له بلې خوا دهېواد دسیاسي - پوځي وضعې نه دباچا د دفتر دغلط استنباط له مخې دباچا اعتبار راښکته کړ؛ خوبیا هم دې درې واړو هڅو په افغان سیاست کې دباچا دډار او مضمرې محافظه کارۍ کنګل مات کړ.

د ۱۹۹۷ کال داګست په وروستیو کې دطالبانو له خوا دجلال آباد له نیولو نه دوه ورځې وروسته دباچادفتر، هېواد ته دهغه دډېر ژر ورستنېدو اعلان وکړ. باچا فکرکړی و چې، طالبان په رښتیا هم دده دبې معاشه عسکرو په توګه دهغه لپاره جګړه کوي. طالبانو هم په ولس کې دباچا له نفوذ څخه په ګټه اخیستو دخپلو پوځي پرمختګونو لمن آن تر کابله وغزوله.

له افغانستان څخه دروسانو له وتلو نه وروسته دالومړي ځل و، چې دطالبانو له خوا د جلال آباد په نیولو دافغانستان دمسئلې د پوځي حل امکان پیاوړی شو(۱۰۰). نو بیا په دومره ورونکي پوځي موقف کې باچاته د «امارت» دورکولو شاته دطالبانو کوم منطق پروت و؟ داټول اوټول په افغانستان کې دشته سیاسي -پوځي واقعیتونو اودیوه بنسټپال اسلامي تحریک له متن او غوښتنو څخه دباچا اودهغه دمشاورینو بې خبري ده.

برسیره پردې، دامریکې په کانګرس کې دکالیفورنیا دیوه وکیل روربکر له یوې شخصي سیاسي هڅې سره، چې غوښتل یې دایران په ابتکار د «رباني-حکمتیار» دحکومت دجوړېدو په وړاندې دباچا پره ولوبوي؛ په پښتنو کې دباچا دمحبوبیت له سیاسي قوت، په تاجکو او ازبکو کې په ترتیب

دمسعود او دوستم ددوو پوځي قوتونو څخه دافغانستان لپاره د زعامت دیوه مثلث په جوړولو افغانستان داسلامي بنسټپالنې له شرنه وژغوري[۱۰۱]، دباچا موافقه دهغه بله سیاسي تیروتنه ښیي.

په داسې حال کې چې دازبکو او هزاره ګانو پوځي قوتونه له پښو لوېدلي دي، د طالبانو اسلامي بنسټپالنې دیوه ورځ په ورځ پرمختلونکي اود مسعود نژاد پالنې دیوه ورځ په ورځ په شاتلونکي دوو بې ثباتو پوځي قوتونو په توګه، چې په ترتیب سره نن سبا دهېواد په سلو کې څه ناڅه ۸۵ او ۱۵ پراخوالي کنترولوي، هېواد دیوه بدلېدونکي پوځي-سیاسي حالت سره مخ کړیدی. نو، باچا باید په هیواد باندې ددغسې یوه کیفي اوکمي پوځي-سیاسي حاکمیت په بنسټ چې د پښتنو د مطلق اکثریت، ازبکو، ترکمنو او هزاره ګانو سیمې د طالبانو او د تاجکو او څه پښتنو ګډې سیمې د قوماندان مسعود د کنټرول لاندې دي، ددرېیم قوت دیوه مهم او عامل توکي په توګه ددرېیم بالفعل قوت دجوړولو دلنډې او اوږدې مودې ستراتېژي عیاره او جوړه کړي.

دمسعود د پوځي قوت په بنسټ له هغه سره دباچا یووالی نه یوازې دباچا کسرشان دی، بلکې د طالبانو داسلامي بنسټپالنې په وړاندې یو پیاوړی سیاسي - پوځي مقاومت هم نشي جوړولی. د قوماندان مسعود له پوځي قوت سره دباچا ائتلاف یوازې او یوازې د مسعود یو غټ سیاسي بریالیتوب ګڼل کېدای شي نه دباچا پوځي ابتکار. په خپله اوسنۍ مشورتي حلقه کې په پاتې کېدو سره به، قوماندان مسعود له باچا نه دهغې زینې کار واخلي چې له ختلو وروسته به یې را غورځوي.

په افغانستان کې په نژادي بنسټونو او دبېلتانه په غوښتنو له ولاړ شمال ائتلاف او د طالبانو د متعصبې اسلامي بنسټپالنې له شرنه د خلاصون، په افغانستان کې د زعامت د سیاسي خلا د ډکولو، د سیاسي استقلال دبیا اعادې، د ملي واکمنۍ او د خاورې دبشپړتیا لپاره درېیم بالفعل قوت په یوازې سیاسي هلو ځلو نشي جوړیدای. د دومره غټو ملي اهدافو اعاده په یوازې سیاسي قوت نشي کېدای. دیوه بالفعل سیاسي -پوځي درېیم قوت دجوړیدو نه پرته دا قوت بې مانا دی.

دبالفعل درېيم قوت ټول جوړوونکي توکي په عام او باچا په ځانګړي ډول باید په دې واقعیت پوه شي چې، د یوغیر پوځي - سیاسي ، یوازي سیاسي درېیم قوت جوړول له شته سیاسي -پوځي واقعیتونو او نویو قومي غوښتنو څخه بې خبري او د یوه متمم په توګه له درېیم «سیاسي» قوت سره د مسعود د «پوځي» قوت یو ځای کول اولدې لارې یو بالفعل درېیم قوت جوړول په افغانستان کې د ملي جریان او د ربښتیني بالفعل درېیم قوت ځان وژنه ده.

د اسلامي بنسټپالنې په پوځي قوت هم له سره باور نشي کېدای. په افغانستان کې یوازې او یوازې د نژاد پالنې او اسلامي بنسټپالنې د دواړو جګړه مارو پوځي قوتونو په ویلي کولو (له هرې لارې چې کېږي) د یو بالفعل درېیم قوت د جوړېدو لار اواریدای شي.

باچا باید د درېیم قوت ټول جوړوونکي اساسي توکي، لویه جرګه، پیر، د افغان ملت ګوند، او د دې په څنګ کې آزادې ملي حلقې، ملي شخصیتونه، د روشنفکرانو استازي، د ټولو قومونو مشران، وطنپال روحانیون او ملایان، ټول په یوه «افغاني» بنسټ د یوه او بدلي ملي سازمان په توګه یو موټی کړي. خوله دې سره سره، د درېیم قوت د تشکیلاتي او ایدیالوژیک یووالي او په هیواد کې د ملي ایډیالوژۍ د تعمیم په خاطر د یوې ایډیالوژیکي-سازماني هستې موجودیت د یو بالفعل درېیم قوت په جوړېدو کې هېڅکله هم له نظره نشي غورځېدلای.

په ختیځ پښتون خو په کلتوري لحاظ تاجک باچا د درېیم قوت د جوړېدو لپاره له بل هرچا نه زیات مستعد قوت دی. د وینې او ژبې دا ډول ګډون او التقاطي تشخص باچا ته نن سبا په افغان سیاست کې یو بې ساري امکان ورکړی دی. خو د باچا د پروني څلوېښت کلن سلطنت د خامې ډموکراسۍ د لسیزې او د تېرو دوه نیمو لسیزو د جګړې او د افغانستان د قومي جوړښت د پروني نسبي کوښښونو د ختلو په نتیجه کې له منځه تللی ملي پیوستون ښیي چې:

غیر پښتانه غټ او کوچني اقلیتونه او د کلتوري ستم لاندې پښتون اکثریت نه غواړي چې د دوی سیاسي او کلتوري حقوق دې بیا هم ټول د دربار د

پښتنو او دربار ته د نژدې تاجکو د انحصار غوښتنو په لاس تالا والا شي. باچا باید پدې پوه شي چې پښتانه به هم نور هغه بې قبده اوبې شرطه ونه مني. پښتانه نه غواړي چې په پښتنو کې دې د باچا د قاطع محبوبیت نه په استفادې سره، شمال ائتلاف، متحده جبهه او یا مسعود درېیم قوت د خپلو پوځي غوښتنو نه ځار کړي. داسې نشي کېداي چې باچا دې د پښتنو په یوازې سیاسي او د شمال ائتلاف په پوځي زور راشي.

**باچا او نشنلیزم:**

نشنلیزم چې په افغانستان کې یې په دولسمه پېړۍ کې دلومړي او اتلسمه پېړۍ کې د دویم پښتانه نشنلیزم پړاوونه په بریالیتوب ووهل، په نولسمه پېړۍ کې د افغان نشنلیزم خپل درېیم بشپړتیايي پړاو ته ننوت (۱۰۲)، دا پړاو د باچا تر وخته را رسېږي.

د باچا د سلطنت ځلوېښت کلنه دوره د افغان نشنلیزم د بشپړتیا په درېیم سیاسي پړاو کې، چې د نولسمې پېړۍ نه پیل او دده په دوره کې د خپل پخلي په یوه ځانګړي تبلور کې راغی، واقع ده. دومره چې د باچا د سلطنت وروستي لس کاله (د دموکراسۍ لسیزه) د افغان نشنلیزم د پخلي او تبلور لپاره ښه ثابت نشول. باچا د افغان نشنلیزم د درېیم بشپړتیايي پړاو خالق نه، بلکې دی او دده سلطنت د افغان نشنلیزم د درېیم بشپړتیايي پړاو محصول دي.

افغان نشنلیزم چې د نولسمې پېړۍ په وروستیو کې د خپل پخلي په بحراني، نویو او پخو پړاوونو کې راغی او په هیواد کې د ملي یووالي او قومونو ترمنځ د پیوستون په دود په شمال کې د قومي اجزاو یومتناسب بدلون تعقیب شو؛ د باچا په دوره کې یې، د یو لړ اقتصادي-کلتوري پروژو په تطبیق د خپل پخلي ځو ځو پاخه ګامونه هم واخیستل.

په هیواد کې د ملي ایډیالوژۍ د تعمیم او په «افغاني هویت» د بېلو بېلو افغاني قومونو په قناعت کې د باچا د سلطنت د دویمې لسیزې د تذکرې دویش پروژې هومره اساسي رول ولوباوه لکه دده د سلطنت د ځلورمې لسیزې (۱۹۶۰ لسیزه) د پخوسړکونو شبکې چې د افغانستان د اساسي سیاسي - اقتصادي حوزو په نښلولو بېل بېل افغاني قومي توکي په کلتوري او اقتصادي بنسټونو

سره نژدې کړل[۱۰۳].

هوايي او ځمکني مواصلاتو، ټيلي کمونيکيشن، راډيو افغانستان، او دښوونې او روزنې د پرمختګ له مخې په هېواد کې د نوي تحصيل يافته قشر په روزنې سره د دولت او ولس ترمنځ کلتوري، اقتصادي او سياسي اړيکي نور هم پياوړي شول[۱۰٤].

داخو د باچا د سلطنت په دوره کې ؤ چې د هيواد په شمال کې د کوچي او د ښځين پښتانه د ځای په ځای کونې د اتلسمې او نولسمې پېړۍ د قومي اجزاو په تناسب کې د مثبت بدلون ملي پروژه تعقيب شوه او لدې سره جوخت د هيواد د شمال يو شمير غير پښتانه اقليتونه په جنوب کې ميشت شول.

په عمومي توګه افغان نشنليزم په اتلسمه او نولسمه پېړۍ کې د سياسي جغرافيې د جوړښت په کار کې بوخت و. خو، په شلمه پېړۍ او په تېره بيا د دې پېړۍ په نژدې نيمايي موده يعنی د باچا په څلويښت کلن سلطنت کې يې برسېره پر نورو چارو د اقتصاد، کلتور، قانون، او ټولنيز پيوستون په کار کې څه ناڅه پرمختګ هم وکړ.

د هيواد د رسمي او ايکي يوې ژبې په ځای د دوو ژبو په منلو، د باچا سلطنت د ملي ايډيالوژۍ د تعميم په لار کې د ژبې د بنسټيز رول په نفې کولو سره د افغان نشنليزم په پخلي کې يو مرګونی څنډ پېښ کړ.

په ۱۹٤۷ کال، د پاکستان د جوړېدو په وخت کې، د باچا سکوت په «ډيورنډ لاين» پرتې دوړې پو کړې.

د ژبې او ختيځ په بنسټ په هېواد کې د قومونو د وېش له مخې سياسي او کلتوري حقوق په دموکراتيک ډول تامين نشول. دې کار په خپل وار د ملي ايډيالوژي د تعميم پروسه لازم پرمختګ ته پرېښنبوده. له دموکراسۍ نه پخوا، تاجکو ته چې اصلاً د هېواد د نفوس په سلو کې د ولس جوړوي[۱۰۵] په سلو کې ۲۹،۲ غټ دولتي پوستونه[۱۰٦]، پښتنو ته چې د افغان نفوس په سلو کې لېترلږه ٦۳ جوړوي[۱۰۷] په سلو کې ۵۱،۹ دولتي غټ پوستونه (چې اکثره به محمدزيانو ته رسېدل)[۱۰۸]، لکه څنګه چې مخکې هم وويل شول، ساداتو ته چې په افغان نفوس کې د پاملرنې وړ فيصدي نشي جوړولای، په سلو کې ٤،٦،

نورو سني قومونو ته په سلو کې ټول ټال ٥ ،٤ او اهل تشيع ته په سلو کې ٨ ،١ داډول پوستونه ورکړل شوي وو(١٠٩). دباچا دډموکراسۍ په دوره کې دا ويش په دې ډول و: پښتنو ته په سلو کې ١ ،٥٦ ، تاجکو ته ٣٣ ، ساداتو ته ٣ ،٣ ، نورو سني قومونو ته ٥ ،٥ او اهل تشيع ته په سلو کې ٢ ،٢ غټ دولتي پوستونه رسيدلي وو(١١٠).

باچا بايد پښتانه اکثريت او نورو کو چنيو قومي اقليتونو ته په کم نظر او غير سياسي سترگه ونه گوري. هغه بايد پدې پوه وي چې پښتانه او نور کوچني اقليتونه دجگړې په کلونو کې دنويو غوښتنو او تجربو سره آشنا شويدي. پښتنو په عمومي ډول دشپېتمې لسيزې او په ځانگړي ډول له ١٩٧٨ نه را پدې خوا دکمونستي او اسلامي راډيکاليزم او بنسټپالنې په دوو مخالفو قطبونو کې دوېش او ويلې کېدو او دجگړې دناوړو ملي عواقبو په توگه په هيواد کې دنويو قومي - نژادي غوښتنو دراپورته کېدو شخه نوې تجربې هم لاس ته ور وړې دي.

له يوې خواد باچا دسلطنت دوروستۍ لسيزې خامې ډموکراسۍ او له بلې خوا په افغانستان کې دخلق-پرچم حکومت او دروسانو پوځي مداخلې داقليتونو او اکثريت ترمنځ ببخښن درزونه پيدا او لا ژور کړل. دټولنې په قومي جوړښت کې دپرچم دحکومت دلاسوهنې په نتيجه کې داقليتونو غير طبيعي ودې او له اکثريت نه اقليت ته دپښتنو دراښکته کولو هڅې په افغان ټولنه کې دملي يووالي او پيوستون شېرازه له منځه يووړه. باچا بايده ده چې د ١٩٩٢-٩٧ کلونو په دوره کې په بېلو بېلو څلورو قومي - سياسي واحدونو باندې دهيواد دويشلو ترخه واقعيتونه په نظر کې ونيسي.

داخو دملي ضرورت په بنسټ نه، بلکې داسلامي بنسټپالنې دجهانبينۍ دوکتورين دي چې دسياسي قدرت دانحصار لپاره دطالبانو تحريک دشمال دنژادي ائتلاف له پوځي قوت سره دجگړو په نتيجه کې نوموړي واحدونه له څلورونه دوو ته راښکته کړيدي.

باچا او نور بايد په دې پوه وي چې: طالبان يوايډيالوژيک، مذهبي، سياسي ، بنسټپال، جلاقوم دی، نه پښتون دی، نه تاجک ، نه بل اونه بل.

قوماندان مسعود ته دغير پښتانه اقليتونو اوباچا ته دپښتانه اکثريت

دحکمتیار لـه اخواني گروپ (حزب اسلامي افغانسـتـان) څخه داسلامي بنستپالنې اوسخت دريځی ټولو ډلو، ازبک ملېشې، هزاره حزب وحدت، دمنځ مهالي درې گوني اتحاد پـه گډون دشمال ائتلاف دمشرۍ لاندې پـه کابل کې دمجاهدينو اسلامي دولت جوړ کړ. دسياسي قدرت دوېش پـه سر د تاجکو، ازبکو اوهزاره اقليتونو ترمنځ اختلافاتو شمال ائتلاف درې ټوټې کړ.

دتوتـه شوې اسلامي بنسټپالنې دوه اصلي ډلې: درباني - مسعود دمشرۍ لاندې نژادگره اسلامي بنستپالنه يوې خوا اودحکمتيار دمشرۍ لاندې سوچـه اسلامي بنستپالنـه بلې خواتـه د سياسي قدرت ددوو مهمومدعيانو پـه توگه پـه خپلو کې سره ولوېده. دسياسي قدرت دنيولو پدې اخ وډب کې دربيم قوت پـه ډيره اسانۍ لـه صحنې ووت. شره وېشلی اسلامي راډيکاليزم او بنستپالنه دافغانستـان د پوځي-سياسي ډگر يوازينی پوځي قوت پاتې شو. پـه نوم شمال ائتلاف يااسلامي نژاد گر راډيکاليزم دسياف د وهابي بنستپالنې پـه مرسته تر ۱۹۹۷ کال پورې پـه کابل کې خپل حکومت وساتـه. تردې کال پورې داسلامي بنستپالنې اونژادگر راډيکاليزم دسياسي - نژادي برلاسۍ غوښتنو پـه نتيجه کې افغانستـان پـه څلورو نژادي - سياسي حوزو وېشل شو[٥].

پدې مرحلـه کې (۹۷-۱۹۹۲) نژاد گر اسلامي راډيکاليزم پـه شمال اوسوچه اسلامي راډيکاليزم پـه جنوب کې داسلامي بنستپالنې ددوو سره ورانو ډلو پـه توگه پـه هيواد کې دلومړي قوت (کمونستي راډيکاليزم) دلـه منځه تللو پـه نتيجه کې دقدرت راغلې سياسي خلا ډکه نکړای شوه.

لـه ۱۹۹٤ څخه، پـه جنوب کې دسوچه اسلامي راډيکاليزم ځای نويو سياسي شوو ملايانو ونيوه اود کليوالي، ښاري، افغاني او پاکستاني مدرسو دطالبانو، ملايانو اومولويانو څخه جوړ دطالبانو اسلامي تحريک پـه افغانستان کې دسياسي قدرت دنيولو کار پيل کړ. ځينو داتحريک دربيم قوت وبالـه. پـه ښکاره خو همداسې هم وه. ځکه چې، دنوي دولت پـه تاسيس اودسياسي قدرت د خلا پـه ډکولو کې دناکامې او ټوټـه شوې اسلامي بنستپالنې اوراډيکاليزم ځـاي داسلام همدې نوي سياسي -پوځي بديل ونيوه. خو،

دمشرۍ ورکول، پښتانه په طالبانو پورې تړل او یا پښتانه په بنسټپالنې او سخت درېځۍ نوم بدي کول د پښتنو او غیر پښتنو اقلیتونو د سپکاوي او دوي ته په تېټ نظر دکتلو نه پرته بله مانا نلري. غیر پښتانه افغان قومونه هم باید باچا دیوه افغان مشر په حیث ومني.

باچا باید دیوې معقولې او متناسبې نمایندګۍ له مخې په افغانستان کې د «دولت» او «ټولنې» دفزیکي او معنوي بیارغونې دکار په «افغاني» بنسټونو فکر وکړي. په افغانستان کې په «غیر افغاني» روحیه د «دولت» او «ټولنې» بیاجوړول دهېواد د تجزیې سره مترادف ناوړه ملي عواقب لري.

دهېواد اداري - سیاسي یووالی په هېواد کې د ملي ایډیالوژۍ او افغان نشنلیزم د پخلي یو بل پوخ ګام دی. باچا دهیواد د قومونو او سمتونو په بنسټ ولاړ زوړ اداري سیستم بدل کړ. په ۱۹٦٤ کې دهیواد نوی اداري-سیاسي سیستم د ۲۹ اداري-سیاسي واحدونو په نوم جوړشو[۱۱۱]. پخوا به خلکو ځان په خپلو «قبیلو» او «خیلونو» یاداوه. پدې دوره کې وچې خلکو ځان په خپلو اداري- سیاسي واحدونو یادکړ. دا په افغانستان کې د نشنلیزم د پخلي او ودې یوه ښه نښه وه. خود دموکراسۍ له لسیزې نه نیولې تر ننه پورې په هېواد کې د ملي پیوستون او اداري-سیاسي یووالي په ضد ډیر کار هم شوی دی. له ۱۹۹۲ کال نه وروسته ؤ چې ځینو افغان اقلیتونو په ښکاره دفدرالیزم غیر افغاني نقشې جوړې کړې. ددې ډول نقشو او غیر ملي غوښتنو واقعیتونه باید په سرسري نظر ونه لیدل شي. پکار ده چې باچا دهیواد دسیاسي - اداري رښتیې بیا رغونې په خاطر پاخه ګامونه په نظر کې ولري. ددې ډول غیر ملي او غیر افغاني غوښتنو په راپورته کولو کې په کمونستي راډیکالیزم (۹۲-۱۹٦٤) برسېره، اسلامي بنسټپالنه (۱۹۹۹-۱۹٦٤) هم لوی لاس لري.

نو، ترڅوچې دباچا تکتیک او ستراتیژي د نشنلیزم د پخلي له عناصرو جوړه نشي، وړونکی او مثبت سیاسي رول هم نشي لوبولای او افغانستان به د اسلامي بنسټپالنې دسقوط نه وروسته بیا هم دزعامت دیوې خطرناکې سیاسي خلا سره مخ شي.

افغان نشنلیزم نه په پښتانه اکثریت دقابضې اسلامي بنسټپالنې اونه داقلیتونو په ډیروکوچنیو نژادي-قومي بتیو کې تبلور موندلای شي. ملي ایډیالوژي اونشنلیزم یوازې او یوازې په افغان بتۍ کې پخېږي اوبس.

## باچا اوډموکراسي:

دباچا دسلطنت څلورمه لسیزه وه چې، د ۱۹٦٤ کال لویې جرگې دهېواد دهمدې کال اساسي قانون تصویب کړ (۱۱۲). دموکراسي سره لدې چې په اصولو کې دسیاسي پلورالیزم په توگه یومترقي عمل و، خو دشته سیاسي او ټولنیزو واقعیتونو په بنسټ ددموکراسۍ دلسیزې عواقب ډیر ناوړه وو. په یوه خام ذهني سیاسي چاپیریال کې دموکراسۍ دمثبتو په ځای منفي او ناوړه ملي عواقب وزېږول. دواړو، هم کمونستي او هم اسلامي راډیکالیزم اوبنسټپالنې وده وکړه اوپه افغانستان کې یې د «دولت» او «ټولنې» ځو سوه کلنه افغاني شېرازه سرکپ کړه. اوس داهیله کېږي چې باچا دخپلې خامې دموکراسۍ دلسیزې په ناوړو ملي عواقبو پوه وي. اوس په افغانستان کې ددموکراسۍ مرحله نده. دهیواد دسیاسي جغرافیې او په هیواد کې په «افغاني» بنسټونو د «دولت» او «ټولنې» فزیکي او معنوي بیارغونه، په یوه وسپنیز نظم اوضبط کېږي. اوس دمضمرو محافظه کاریو اوبې ځایه سیاسي مصلحتونو وخت ندی.

## باچا اواسلام:

افغانستان دتل لپاره یو اسلامي هیواد پاتې شویدی. دباچا دسلطنت په دوره کې هم افغانستان یو اسلامي دولت و. اسلام دافغانستان رسمي دین او حنفي فقهې دهیواد حاکم شرعي نظام جوړاوه (۱۱۳). لکه څنگه چې مخکې هم ویل شوي دي، داسلامي شرعې په بنسټ ولاړ قضایي نظام یاقضائیه قوې (Judiciary) په افغانستان کې ددوو مقننه (Legislature) او اجرائیه (Executive) قوو سره دسیاسي قوت عنعنوي مثلث جوړاوه (۱۱٤).

په ۱۹۲۹-۱۹۱۹ دوره کې ؤ، چې دولت داساسي قانون د ٥۳ مادې په اساس دقضائیه قوې لرغوني استقلال او واک ته په احترام سره، هغه مقیده کړه. دفقهې او قضایي چارو دیوشمېر پوهانو په مرسته ؤ چې دولت پدې دوره

کې دیوه قضايي اومدون جزايي قانون په توګه د «تمسک قضاة امانية» په نوم دوه ټوکیزې رسالې د قاضیانو بې حده قضايي واک او اختیار ته حدود وټاکل[۱۱۵].

برسېره پردې، په همدې دوره کې وچې یوله بل څخه د حقوق العبد او حقوق الله په بیلیدو سره په قضايي او حقوقي چارو کې د پولیسو او ولایتي جرګو لاس پیاوړی شو[۱۱۶].

په ۳۳-۱۹۲۹ کې ؤ چې قضائیه قوه یوځل بیا دستروا ک خاونده شوه[۱۱۷]. دې قضايي واک دباچا دسلطنت دورې ته هم غزونې وکړې. خو دومره چې د شرعي قوانینو په څنګ کې سیکولر قوانین هم دورځنیو ضرورتونو سره موازي دژوند په بېلو بېلو اجتماعي، اقتصادي چارو کې تدوین او نافذ شول[۱۱۸].

# دریمه برخه

## لنډیز

* د دموکراسۍ په لسیزه کې درې ډوله سیاسي جریانونه د درې سیاسي قوتونو په توګه منځ ته راغلل:

* کمونستان، لومړی سیاسي قوت

* اسلامي بنسټپالنه، دویم سیاسي قوت

* ملي جریان، دریم سیاسي قوت

* په ۱۹۷۸ کال، دریم قوت کمزوری، خو لومړي او دویم قدرت بشپړ سیاسي، ایډیالوژیک او پیاوړی سازماني تشکیل درلود.

* په همدې کال دلومړي قوت (خلق-پرچم) په لاس د سیاسي قدرت په نیولو، دویم قوت، اسلامي بنسټپالنې په ټوله ۹۲-۱۹۷۸ دوره کې دډېرغښتلي سیاسي - پوځي امکان په ترلاسه کولو دهیواد د آزادۍ جګړه په یوې داسې بشپړې مذهبي جګړې بدله کړه چې، په نتیجه کې ملي جریان یا دریم قوت نه یوازې داچې د اسلامي بنسټپالنې په کمین کې ګېر شو، بلکې؛

* پدې دوره کې د دریم قوت یا ملي جریان مورچل د تصوف د نقشبندیه (حضرت) او قادریه (پیر) طریقو په دوو مشرانو او یوه ملا (محمدي) ونیول شوه. د تصوف او مذهب دا سیاسي امتزاج د «درې ګوني اتحاد» په نوم یاد شو. د همدې اتحاد په وجود کې دریم قوت په یوه دویم لاس پوځي-سیاسي او غیر ایډیالوژیک موقف کې راغی:

* دریم قوت د دموکراسۍ په لسیزه کې د «افغان ملت» او «مساوات» په بڼه کې یو کمزوری ایډیالوژیک قوت و؛ په ۹۲-۱۹۷۸ دوره کې د «درې ګوني اتحاد» په بڼه کې یو غیر ایډیالوژیک پوځي- سیاسي قوت شو. خو

دریم قوت نه یوازې داچې، نن یو ایډیالوژیک قوت نه دی، خپل پرونی پوځي موقف یې هم له لاسه ورکړیدی.

* په کال ۱۹۹۲ کې دلومړي قوت په چپه کېدو سره، دې په نامه دریم قوت په کابل کې ددویم قوت دحکومت په وړاندې خپل پوځي-سیاسي موقف له لاسه ورکړ. په نتیجه کې دافغان نشنلیزم دڅوسوه کلن سیاسي قدرت دستگاه دویم قوت (اسلامي بنسټپالنې) ښه له پښو وغورځوله.

* ویلای شو چې: په افغانستان کې دریم قوت نه یوازې په بالفعل بلکې دیوه مستقل بالقوه قوت په توگه هم لامنځ ته ندی راغلی. دومره ده چې ددریم قوت اویاملي جریان دجوړیدو لپاره څه انرژي ذخیره شوې ده.

* په ۹۷-۱۹۹۲ دوره کې نژادگرې اسلامي بنسټپالنې په شمال او سوچه اسلامي بنسټپالنې او سخت دریځې په جنوب کې داسلامي بنسټپالنې ددوو سره ورانو ډلو په توگه، دخپل دښمن لومړي قوت خلق-پرچم دحکومت دچپه کېدو نه وروسته په هېواد کې دزعامت سیاسي خلا ډکه نکړای شوه.

* له ۱۹۹٤ څخه، په جنوب کې دسوچه اسلامي بنسټپالنې او سخت دریځې څخه دوسلې په اخیستلو، دافغاني او پاکستاني مدرسو دطالبانو او نویو سیاسي شوو ملایانو څخه جوړ دطالبانو اسلامي تحریک په هیواد کې دسیاسي قدرت دنیولو کار پیل کړ.

* دطالبانو تحریک ځینو دریم قوت وباله خو داسې نه وه: داخو پرونۍ سترې شوې بنسټپالنه او سخت دریځي وه چې دیوه نوي ننني سیاسي - پوځي بدیل په توگه دطالبانو په وجود کې سُره یو موتې شوه. نو، طالبان په ایډیالوژیک او سیاسي بنسټونو ددویم قوت (اسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم) ادامه ده، نه دریم قوت.

* دطالبانو اسلامي تحریک او شمال ائتلاف اوس دقوماندان مسعود په بنه کې، دواړه په افغانستان کې ددویم قوت، اسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم سره نښتي دي. یو ددې بنسټپالنې ادامه او بل یې داسې نژادگره انشعابي څانگه ده چې ددې بنسټپالنې په ۹۲-۱۹۷۸ عروجي دورې کې یې په ښې ودې برسېره، نورې نژادي ډلې ټپلې هم دخپلې چپنې او پگړۍ لاندې

راوستې: داسلامي بنسټپالنې دادامې په دود دطالبانو اسلامي تحريک افغان سياست يوځل بيا انحصار او دشمال ائتلاف په بڼه کې دې ناکامې اسلامي بنسټپالنې نژادي لار ونيوه نوپه زغرده ويلای شو چې «شمال ائتلاف» او «طالبان» دواړه په افغانستان کې ددويم قوت توکي دي.

***

* ديوه بنسټپال خو غير (اخواني-وهابي) اوديوه معتدل خو غير سيکولر ملا په توگه به «محمدي» په افغانستان کې ددرېيم قوت دتجهيز په صورت کې، ښايي بياهم دباچا لار ونيسي.

* دحضرت دفقهي دانفاذ غوښتنه يوه ډېره زړه اونه غوښتنه ځکه ده چې، هيڅا هم تر اوسه پورې په افغانستان کې ددې غوښتنې مخالفت ندی کړی. دهغه دباچا دبيا راستنيدو غوښتنه يوه اساسي او رښتيانې غوښتنه نه ده. ديوه ملي ضرورت په توگه هغه دباچا بيا راستنيدلو اوددرېيم قوت جوړيدو ته دشک په سترگه گوري.

* دملي گرايۍ او روحانيت التقاطي شخصيت دي چې پير، نن سبا له ملي او روحاني دواړو سرچينو څخه اوبه خور لري. ښکاري چې، هغه درېيم قوت اودهغه په راس کې باچا يو ملي ضرورت گڼي.

* افغان ملي جريان، يو ښپړ مسلمان، خو غير روحاني اوغير مذهبي جريان دی.

* تصوف اومذهب دواړه، له ملي بېخ اوبنسټ نه پرته، په يوائې ځان نشي کولای درېيم قوت جوړ او رهبري کړي. پير ښايي په تمامه مانا خو، حضرت څه ناڅه ښايي ددې جريان روحاني او محمدي يې مذهبي توکي شي.

* په ۱۹۸۹ کې دراولپنډۍ دمشورتي شورې له خوا جوړ ديوه پردي موقت ائتلافي حکومت او بيا دپېښور دتړون له مخې په ۱۹۹۲ کال په کابل کې دمجاهدينو داسلامي دولت دمشر په توگه دحضرت ټاکل، ښايي توجيه شي. خو، ديوه ملي جريان ديوه لومړي گام په توگه ديوه بالفعل درېيم قوت په راس کې دتصوف اومذهب درول دملي جريان تحريفول دي.

***

* د یوغیر پوځي - سیاسي ، یوازي سیاسي درنیم قوت جوړول له شته سیاسي - پوځي واقعیتونو او نوو قومي غوښتنو څخه بې خبري او د یوه متمم په توګه له درنیم سیاسي قوت سره د شمال ائتلاف د پوځي قوت یوځای کول اولدې لارې بالفعل درنیم قوت جوړول په هیواد کې د ملي جریان او رښتیني بالفعل درنیم قوت ځان وژنه ده.

* په یوه سره او بدلي پوځي - سیاسي قوت باندې د درنیم قوت د بدلولو له پاره د دې قوت په بېخ او بسنې کې د یوې ایډیالوژیکې سازماني هستې ځای په ځای کول به د یوه رښتیني بالفعل درنیم قوت ضمانت وکړي.

* درنیم قوت کېدای شي د شکل له مخې یوه ائتلافي بڼه ولري. خو، د ماهیت له مخې باید یو ایډیالوژیک قوت هم وي. د یوه ایډیالوژیک نظام د نه موجودیت په صورت کې به دا قوت ډیر ژر سره و شیندل شي. بیا به د نژاد پالنې او اسلامي بنسټپالنې دراغورځولو له پاره د درنیم قوت بدیل له پښو لویدلی وي.

* داخو یوه ایډیالوژیکه ساده ده چې، له درنیم قوت نه یو په پښو ولاړ سیاسی (یا بالقوه یا بالفعل) قوت جوړوي. یو غیر ایډیالوژیک درنیم قوت په هیواد کې د پوځي بدلونونو په نتیجه کې هیڅکله هم خپل سیاسي ثبات نشي ساتلی؛ ځکه:

* داسې نده چې، یوازې او یوازې د دوو سره ورانو پوځي - سیاسي قوتونو په جګړه کې یو بل، یا منځګړی یا مخالف، پوځي - سیاسي قوت درنیم قوت دی. درنیم قوت د خپل ایډیالوژیک موقف له مخې درنیم قوت ګڼل کیږي، داموقف نن سبا په افغانستان کې پرته له یوه «ملي جریان» څخه، د «سیاسي اندیښنو» بل هیڅ یو «جریان» نشي خپلولی.

***

* په افغانستان کې په «غیرافغاني» روحیه د «دولت» او «ټولنې» بیاجوړول د افغانستان د ټوټه کېدو سره مترادف ناوړه سیمه ییز عواقب لري او په «افغاني» بنسټونو د «دولت» او «ټولنې» بیارغونه د درنیم قوت په بڼه کې د ملي جریان اساسي دنده ده. نو، د نن یو «رښتیني بالفعل درنیم قوت» د سبا د یوه «بشپړ ملي جریان» له متن سره نامترادفه مانا نشي لرلی.

په لنډ ډول، د درېیم بالفعل قوت د جوړېدو کورنۍ ستونزې او خامۍ کېداي شي:

* دباچا محافظه کاري، خوشباوري او زړښت؛

* په باچا کې د شمال ائتلاف سیاسي نفوذ او په دې ائتلاف باندې د هغه زړه ترل؛

* دافغان ملت ګوند شیندلی او غیر سازماني حالت؛

* او د پیر په محافظه کاره طبعه کې د شمال ائتلاف یا شورای نظار نفوذ وګڼل شي.

نو؛

* د درېیم قوت بنسټیزه خامي نن سبا په هغه کې په ښکاره او پټه د قوماندان مسعود د شورای نظار او یا د شمال جګړه مار قوت زیات سیاسي نفوذ، د دې قوت شیندلی سازماني حالت او غیر پوځي موقف دی.

خو؛ درېیم قوت د خپلو خامیو او ستونزو د لیرې کولو په صورت کې، چې نه آسان او نه، نه کیدونکی کار دی، ډېر پیاوړي امکانات هم لري:

* د درېیم قوت څلور مهم جوړوونکي توکي:

باچا دیوه دولتي، لویه جرګه دیوه ملي، پیر د یوه روحاني او افغان ملت د یوه سازماني - ایډیالوژیک قوت په توګه کولای شي د یوه داسې درېیم قوت بنسټ کېږدي چې په یوه بالفعل سیاسي قوت برسېره، د ډېر ژر پوځي کېدو استعداد هم ولري.

* هسې یوه نیمه کوچنۍ سیاسي - نژادي حلقه او یو شمیر څواکمنې خپلواکې څېرې چې په اسلامي بنسټپالنه کې زیات مالي امکانات لري، د درېیم قوت او ملي جریان په وړاندې د مخالفینو پیاوړی کتار نشي جوړولای:

* د درېیم قوت اصلي مخالفین اسلامي بنسټپالي (وهابیان- اخوانیان) او نوي سیاسي شوي وسله وال ملایان دي، چې د درېیم قوت د ټکولو او تکفیر د «آیت» او «حدیث» ډکي وسلې جوړولی شي.

* یو بالفعل درېیم قوت په اوسنیو شرایطو کې نشي کېدای، د ضرورت

په بنسټ، يو ناپېيلی قوت وي، دا بالفعل درېيم قوت به خاماخا دلويديز په مرسته جوړېږي:

* له هرڅه نه مخکې په کار داده چې، هېواد له درې دښمنو: بهرنی لاس اچونې، نژاد پالنې او اسلامي بنسټپالنې وژغوري.

***

* لومړي قوت دکمونستي او دويم قوت داسلامي سخت درېځيو او محافظه کاريو په بنوکې دخلکو په ټولنيز، کلتوري، عقيدوی او اقتصادي ژوند کې په لاسوهنو، ټولنه يوځل ددوی د پرونی «بې دينی» او بل ځل ددوی دننني «سخت دينی» په ضد په دښمنی او ورانی کې راوسته. ګاونډي يرغل په خپلو پوځي، سياسي او يا دواړو بنوکې لومړی، ددې قوتونو او ټولنې په منځ کې دې دښمنی او ورانی ته لمن ووهله او بيا يې له شمال او جنوب دواړو څخه په پوځي او سياسي بنسټونو ددواړو قوتو ننګه وکړه.

* دلومړي او دويم، دواړو قوتونو دانقلابي تيوريو په وړاندې دشتو افغان ټولنيزو، کلتوري او سياسي واقعيتونو حساسيت او ټکر دومره سخت ؤ چې نه يوازې پخپله «افغان دولت» او «افغان ټولنه» له پښو ولوېده، بلکې ددې قوتونو دانقلابي تيورو په نوم حقانيت يې په رښتيا چې غلط ثابت کړ:

* لکه څنګه چې دلومړي قوت دانقلابی تيوری، دماتې پيل افغانستان ؤ، نړيوال اسلامي راډيکاليزم او بنسټپالنې هم دامزل له همدې ټکي پيل کړيدي.

* اسلامي بنسټپالنه او سخت درېځي دخپل سياسي قدرت په اخواني، اخواني - نژادي بنوکې (۹۷-۱۹۹۲) يوځل او بيا دطالبانو په نوم دخپلو سياسي ملايانو (ديني علما) دسياسي قدرت (۹۹-۱۹۹۷) په بنه کې په پاتې راتللو، دسياسي اسلام دنړيوالو راډيکال مشرانو، سيد قطب، مولانا ابوالاعلي مودودي او آيت الله خميني دکتورين په عملي ډول له ماتې سره مخ او داسلامي دولت دټولواک ټولي په توګه دديني عالمانو(Ulema) اويا سوچه اخوانيانو - وهابيانو دولت په افغانستان کې دنړيوال سياسي اسلام لپاره يوه ناکامه تجربه شوه.

# څلورمه برخه

## نتیجه او وړاندیز

پداسي حال کي چې، په یوه لاس کي د توپک او په بل کي د قرآن په نیولو، لا هم د اسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم لاس د افغان ټولنې په نبض اینبی دی، نو د دې دویم قوت، بالفعل ماتول له لاندې نه پورته په انقلاب او پاڅون، لې ترلږه، نن نه ښایي:

* له لاندې نه، دیوه انقلاب لپاره نه لا یو بالفعل، پوځي او ایډیالوژیک دریم قوت منځ ته راغلی او نه لا افغان سیاسي تاریخ په «آیت» او «حدیث» باندې د دویم قوت په څیر بل مجهز قوت پیژني؛ نو:

* دابنسټپالنه هم په کار ده، له پاسه، پخپله د بنسټپالنې، نیمه بنسټپالنې او اعتدال په تفکیک، دیوه نه، بلکې، د څو خپلمنځیو پوځي تصفیو په نتیجه کې د اعتدال پوړیو ته په ور رسېدو خپل ځای دریم قوت ته پرېږدي. داخو ځکه چې:

* دیوه نا مسلمان رژیم په نوم، داخو لومړی قوت، کمونستي راډیکالیزم ؤ، چې، دلاندې نه، دیوه انقلاب په نتیجه کې چې، د سوچه مسلمان رژیم په نوم یې، دویم قوت، اسلامي راډیکالیزم سیاسي قدرت ته ورساوه، له پښو ولوېد.

دايډيالوژۍ، ماهيت او سياسي غوښتنو په بنسټونو دا تحريک اصلاً دمجاهدينو او ياد پخوانۍ اسلامي بنسټپالنې له ادامې نه بل څه نشي کېدای. دومره ده چې، داخواني او وهابي بنسټپالنې سياسي کارکوونکي دعالي تحصيلاتو خاوندان وو او دطالبانو دبنسټپالنې سياسي کارکوونکي زيات زيات له چنې او چټې نه نيولې ترطالب، ملا، مولوي، مولانا او شيخ الحديث پورې دبې سواده او باسوادو فارغ التحصيلانو لښکر دی. نو، دطالبانو اسلامي بنسټپال تحريک دشکل له مخې څه ناڅه يوداسې درېيم قوت ګڼل کېدای شو چې يو يې سوچه اوبل يې نژادي شوی اسلامي راډيکاليزم دواړه له سياسي او پوځي صحنې ليرې او پخپله يې دهغوی ځای ونيوه.

طالبان په ايډيالوژيک او سياسي بنسټونو دااسلامي بنسټپالنې اوراډيکاليزم ادامه ده، نه يو درېيم قوت. دومره ده چې په افغانستان کې يې دنژادي شوي اسلامي راډيکاليزم، کمونستي پاتې شونو او شيعه نژادګر راډيکاليزم په ضد له جنوب څخه په وسله واله مبارزه لاس پورې کړ او ترننه يې دهيواد په سلو کې څه ناڅه پنځه اتيا پراخوالی دخپل پوځي او کلتوري کنترول لاندې راوستی دی. دنژادي اسلامي راډيکاليزم په ضد دااسلامي بنسټپالنې پوځي او سياسي مورچل، په ختيځ دپښتنو طالبانو په تندي دپښتني نژادپالنې تاپه نشي وهلی. دطالبانو تحريک يوبشپړ اسلامي بنسټپال تحريک دی چې، دپرونۍ سترې شوې اسلامي بنسټپالنې اوله پښو لوېدلي کمونستي راډيکاليزم په څېر يې دافغانستان سياسي خپلواکي، ملي واکمني اوداخورې بشپړتيا ټول له جدي خطر سره مخ کړيدي او لګيادی دافغان نشنليزم دپېړيو پېړيو لاس ته راغلي ملي ارزښتونه ديوه بنسټپال نظام په نا اشنا اوغير افغاني ارزښتونو بدلوي.

ويلای شو چې، په افغانستان کې درېيم قوت نه يوازې په باالفعل ډول، بلکې ديوه مستقل سياسي بالقوه قوت په توګه هم ان له ۱۹۷۸ څخه راپدې خوا منځ ته ندی راغلی. دومره چې له ۱۹۹۲ راهيسې ددرېيم قوت دجوړېدو لپاره څه انرژي ذخيره شوې ده. ددرېيم قوت دپيژندنې لپاره پکار ده، مخکې ترمخکې لومړی او دويم قوت څه ناڅه وپېژنو.

## اخیستنځي او یادښتونه

۱) وګورئ صباح الدین کشککي، دهه دموکراسي، ۱۵۰-۱۵٦ مخونه، دافغانستان دجهاد دثقافتي شورا له خپرونو څخه، ۱۳٦۵ لمریز کال.

۲) له دې جریان څخه اوس یوازې او یوازې افغان ملت دافغانستان په نننې سیاسي ډګر کې څه ناڅه سیاسي حضور لري.

3) L. Dupree, Afghanistan, 1980, p. 499.

3*) Ibid, p. 691.

٤) بنیاد ګرایی کهن ووایسین، افغان ملت جریده، ۷۱-۷۰ پرله پسې ګڼه، ۱۹۸۸ کال.

5) Mohammad Enam Wak: "Afghanistan: Afghan Nationalism and Islamic Fundamentalism" : Wak Foundation for Afghanistan, Peshawar, 1999, p. 22.

٦) صباح الدین کشککی، دهه دموکراسی، ۱٤۲ مخ.

۷) پورتنی اخیستنځی، ۱٤۵ مخ.

۸) وګورئ دافغانستان دخلکو ددموکراتیک ګوند مرامنامه.

9) Beverley Male (1982): Revolutionary Afghanistan, Croom Helm Ltd, 2-10 St John's Road, London SW 11, p.107.

10) See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", in Jack Goldstone, Ted Robert, and Farrokh Moshiri (eds), Revolutions of late 20th century. (Boulder: Westview Press, 1991), pp. 162-193.

11) Kakar, 1979, See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

12-17) See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

18) Gupta, 1986, Ibid.

19) Beverly Male, p.110, op. cit

20) Glukhoded, 1978, See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

21) Mukherjee, 1978, Ibid.

22) Beverley Male, p.111, op. cit.

23) Ibid, p . 112.

24) Mukherjee, Glukhoded, See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

25) Halliday, 1988, Ibid.

26) Shahrani, 1984, Ibid.

27) See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

۲۸) وگورئ زاهد احمدزی، دشیخ الاسلام محمد بن عبدالوهاب سلفي اصلاحي تحریک دنورو په نظر کې، ۱۳-۱۷ مخونه، پېښور، پاکستان، دجماعة الدعوة إلى القرآن والسنة له خپرونو څخه.

۲۹) پورتنی اخیستنځی، ٦٢-٦٤ مخونه.

30) See Anwar-ul Haq Ahady, The Decline of Islamic Fundamentalism, Journal of Asian Studies, XXVII, 3-4 (1992).

31) Khomeini, 1981, See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

32) Akhavi, S., 1982, Ibid.

33) Anwar-ul- Haq Ahady, "The Decline of Islamic Fundamentalism", p . 231. op cit.

34-37) Ibid, pp. 231-234.

38) Pipes (1983), See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

39-40) See A. Ahady, "The Decline of Islamic Funda-

mentalism, pp. 231-234, op. cit.

41) Mohammad Enam Wak: "Afghanistan: Afghan Nationalism and Islamic Fundamentalism", 1999, P. 3, op cit.

42) Ibid, p. 8 .

43) Ibid.

44) Ibid, Preface, p. 8 .

٤٤*) دشهادت جريده، ۳۰ جولای، ۱۹۹۲، پېښور.

45) A research conducted by Wak Foundation For Afghanistan (WFA), 1997-1999, Peshawar.

46) See Anwar-ul- Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

٤٧) انجنير استقلال ( محمد انعام واک ) ، دافغان ملت جريده، دويمه دوره، لسمه گڼه، څلورم مخ، ۱۹۸۹، اپريل، پېښور.

48) Daily "The Frontier Post" (Weekend Post), P.8 , March 17, 1995, Peshawar.

٤٨*) زما خپله څېړنه (مؤلف).

49) Mohammad Enam Wak, op.cit., p. 24.

٥٠) دافغان ملت گوند د ۱۹۹۷ کال دخپرې شوې مرامنامې دويم مخ.

٥١) پورتنۍ مرامنامه، دريم مخ.

٥٢) رر رر ۳-٥ مخونه.

٥٣) رر رر دويم مخ.

٥٤) رر رر

٥٥) دافغان ملت گوند د ۱۹۹۷ کال د خپرې شوې مرامنامې لومړی مخ.

٥٦):

- صباح الدين کشککي، دهه دموکراسي، ١٥٤ مخ.

- وگورئ له ۱۹۷۳ نه وړاندې دافغان ملت دگوند نشراتي ارگان، افغان ملت خپرې شوې گڼې.

L. Dupree, Afghanistan, 1980, p. 612.

۵۷ ) دافغان ملت گوند د ۱۹۹۷ کال دخپرې شوې مرامنامې دریم مخ.

۵۸ ) همدا مرامنامه .

۵۹ ) وګورئ: ددې ګوند د ۱۳۵۲ لمریز کال مرامنامه، ددې ګوند د ۱۳۷۵ لمریز کال (۱۹۹۸ ) خپره شوې مرامنامه، په کابل، پېښور او اروپا کې ددې ګوند دمرکزي نشراتي اورګان «افغان ملت » تولې خپرې شوې ګڼې، او په پېښور کې ددې ګوند دویم نشراتي اورګان «استقلال » خپرې شوې ګڼې.

۶۰ ) صباح الدین کشککي، دهه دموکراسی، ۱۵٤ مخ.

۶۰*) دافغان ملت جریده، د ۱۹۶۶ کال دډسمبر دمیاشتې د ۲۷ نېټې ګڼه.(L. Dupree, Afghanistan, 1980, p. 612).

۶۱ ) دافغان ملت ګوند د ۱۹۹۷ کال دخپرې شوې مرامنامې اوم مخ.

۶۲ ) انجنیر محمد انعام واک، په افغان بحران کې ددریم قوت اودهغه دستراتېژۍ په هکله ځینې واقعیتونه، (په انګرېزي ژبه) افغان ملت جریده ، اتم مخ، ۱۹۸۸ کال، دیارلسمه او څوارلسمه ګڼه، پېښور.

۶۳ ) پورتني اخیستنځی .

۶٤ ) دافغان ملت ګوند اعلامیه د ۱۹۸۹ کال دمارچ میاشت.

۶۵ ) وګورئ دشهادت جریده، ۱۳۶۸ لمریز کال، دجوزا دمیاشتې لسمه، پرله پسې ګڼه ۱۸۰، دولسم کال، پېښور.

۶۶ ) وګورئ ونېڅې (انجنیر محمد انعام واک ) ، دافغان ملت دګونددا علامیې په هکله دشهادت دجریدې څغلند نظر ته یوه سرسري کتنه، دافغان ملت جریده، لومړی ، دریم او اوم مخونه، د ۱۳۶۸ کال دغویي او غبرګولي میاشتې، اتلسمه او نولسمه ګڼه، پېښور.

۶۷ ) وګورئ انجنیر محمد انعام واک، ستراتیژي قدرت سوم دربرابر ستراتیژي های چپ وراست برنده است؟ دافغان ملت جریده، دولسمه ګڼه، لومړی او دویم مخونه، د ۱۹۸۸ کال دجولای میاشت، پېښور.

وګورئ انجنیر واک، په افغان بحران کې ددریم قوت اودهغه دستراتېژۍ په هکله ځینې واقعیتونه (په انګرېزي ژبه) ، افغان ملت جریده ۱۳-۱٤ ګڼه،

اگست، سپتمبر مياشتې، ۱۹۸۸ کال، پېښور.
۶۸) وگورئ دسباوون زيرى، دمجاهدينو دموقت ائتلافي حکومت خپروونکى اورگان، څلورمه گڼه، داگست مياشت، ۱۹۸۸ کال، پېښور.
۶۹- وگورئ انجنير واک، انعکاساتي مربوط به ستراتيژى قدرت سوم، افغان ملت جريده، ۱۳-۱۴ گڼه، ۱۹۸۸ کال، پېښور.
۷۰) وگوري ۶۲ اخيستنځى.
۷۱) دافغان ملت جريده، پنځم مخ، ۱۹۹۵ کال، مارچ-اپريل، دويمه دوره، شپږمه گڼه، پېښور.
۷۲) دافغان ملت گوند ددارالانشاء له قوله .(24 August, 1999)
73) Mohammad Enam Wak: Afghanistan: Afghan Nationalism and Islamic Fundamentalism: op . cit .
74) Eden Naby (1986), "The Changing Role of Islam as a Unifying Force in Afghanistan. In A. Banuazizi and M. Weiner (eds): The State, Religion and Ethnic Politics: Afghanistan, Iran, and Pakistan, p.131.
۷۵) قومي مساوات او ملي يووالى، دافغان ملت جريده، ۴۲-۴۳ گڼه، مارچ ۱۹۹۵.
76) See Anwar-ul Haq Ahady,"Afghanistan: State Breakdown", op. cit .
77) Oliver Roy, Islam and Resistance in Afghanistan, Combridge University Press, London, 1986, P 114 .
۷۸) محمد انعام واک، پښتونولي او اسلام، يوه نه خپره شوې څېړنه، ۱۹۹۸، پېښور.
۷۸*) پورتنى اخيستنځى.
۷۹) صباح الدين کشککي، دهه دموکراسي، ۳۳ مخ، د ۱۹۶۴ کال داساسي قانون ۷۸ ماده، ۱۳۶۵ لمريز کال.
۸۰) د ۱۹۶۴ کال داساسي قانون ۴۵ ماده، ډاکتر عبدالعلي ارغنداوى،

ژوندی خاطري، ٤٩٧ مخ، ١٩٩٧ کال، پيښور.
81) Sayed Feda Yonas (Setar-e-Shujaat): Afghanistan: Jirgas and Loya Jirgas: The Afghan Tradition (977 AD-1992 AD) p.VI,19,1988, Peshawar.
٨٢) پروفيسر عبدالرسول امين، دافغانستان دټولنې دزعامت خلا، ٢٥ مخ، دآزاد افغانستان دليکوالو ټولنه، ١٩٩٥ کال، پښور.
ډاکتر انورالحق احدي، دافغان ملت جريده ،٧٧-٧٦ گڼه، ١٩٩٨ کال.
٨٣) صباح الدين کشککي، دهه دموکراسي، ٣٢مخ.
٨٤) پورتني اخيستنځي، ٣٢ مخ.
٨٥) رر رر
٨٦) رر رر
٨٧) رر ٣٣ مخ
٨٨) رر ٣٣ مخ
89) Sayed Feda Yonas (Setar-e-Shujaat) Op. cit.
٩٠) پروفيسر ډاکتر انوارالحق احدي، افغانان بايد هغه څه ونکړي چې دجرگي دکمزورتيا سبب شي، دافغان ملت جريده، څلورم مخ، ٧٧-٧٦ پرله پسې گڼه، ١٩٩٨ کال، داگست مياشت.
٩١) پورتني ليکوال، پورتنۍ جريده، لويه جرگه، سوله اومشروعيت، لومړۍ اودريم مخونه، ٦٨-٦٩ پرله پسې گڼه، ١٩٩٧ کال.
٩٢) وگورئ ٩٠ اخيستنځی.
٩٣) وگورئ ٩١ اخيستنځی.
٩٤) وگورئ دافغان ملت جريده، ٧١-٧٠ پرله پسې گڼه، ١٩٩٨ کال.
٩٥) پورتنی اخيستنځی.
٩٦) وگورئ ډاکتر انوارالحق احدي، له باچانه دخلکو توقعات، دافغان ملت جريده، ٧١-٧٠ پرله پسې گڼه، ١٩٨٨ کال.
٩٧) پورتني اخيستنځی.
98) AIC, Monthly Bulletin, No. 76, July 1987, pp . 2-8.

99) Oliver Roy, Islam and Resistance in Afghanistan, 1986, pp. 124, 125 . op. cit.

۱۰۰) وگورئ ۹٦ اخيستنځی .

۱۰۱) پورتنی اخیستنځی .

102) See Mohammad Enam Wak: Afghanistan: Afghan Nationalism and Islamic Fundamentalism, op. cit .

103) Richard S. Newell, The Prospect of State Building in Afghanistan: The State, Religion, and Ethnic Politics: Afghanistan, Iran, and Pakistan, pp.114-116.

104) Ibid.

105) The Ethnic Composition of Afghanistan, p. 27: A Six year Survey and Research of Wak Foundation for Afghanistan (1991-1996), Peshawar, 1999 .

۱۰٦) افغان ملت جريده، قومي مساوات او [illegible] والی، ۴۲-۴۳ گڼه، ۱۹۵۵ کال.




۱۰۷) وگورئ (۱۰۵) اخيستنځی

۱۰۸)　　رر　　۱۰٦　　رر

۱۰۹)　　رر　　۱۰٦　　رر

۱۱۰)　　رر　　۱۰٦　　رر

111) L. Dupree, Afghanistan, 1980 edition, pp. 156-157.

۱۱۲) صباح الدين کشککي، دهه قانون اساسي، ۳۲-۳۳ مخونه.

113) See Anwar -ul Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown", op.cit.

114) Mohammad Enam Wak: Afghanistan: Afghan Nationalism and Islamic Fundamentalism, op cit., p.8.

۱۱۵) میرغلام محمد غبار، افغانستان درمسیر تاریخ، ۹۵۷ مخ، ۱۹٦۷، کابل.

ARIC
B
4.3831
WAK
8238
cp-1

# AFGHANISTAN CRISES:

# THE 3rd ALTERNATIVE

Mohammad Enam Wak

1999

Wak Foundation for Afghanistan (WFA)
(Research and Implementing Institute for Afghanistan Rehabilitation Development and Drug Control Program)



۱۱٦) پورتنی اخیستنځی .

117) See Anwar-ul Haq Ahady, "Afghanistan: State Breakdown, op. cit .

118) Ibid.

Eden Naby (1986), "The Changing Role of Islam as a Unifying Force in Afghanistan", In A. Banuazizi and M. Weiner (eds): The State, Religion, and Ethnic Politics: Afghanistan, Iran, and Pakistan, p. 131.

## ۱-لومړی قوت، دانقلاب تیوري او عمل:

کمونستي راډیکالیزم له ۱۹۱۷ او بیا په افغانستان کې له ترلږه له ۱۹۵۰ لسیزې [٦] راپدې خوا یو تشکیلاتي - ایډیالوژیک مېکانیزم لرلی دی. له ۱۹٦٤ څخه را وروسته دا میکانیزم د بریوخ شو. دافغانستان دخلکو ددموکراتیک گوند دواړو څانگو خلق او پرچم، په ترتیب سره په کلیوالي او ښاري نفوس کې دخپل نفوذ ستنې ودرولې او دیوه وسپنیز دسپلین او ایکې یوې قوماندې له مخې یې دځوارلسو کلونو په موده کې دشوروي اتحاد دکمونست گوند دایډیالوژیکي او تشکیلاتي تجربې او دشوروي اتحاد په پوځي او مالي مرسته یې تر ۱۹۷۸ کال پورې په افغانستان کې دیوې بریالۍ پوځي کودتا امکانات برابر کړل. په ۱۹۷۸-۱۹۹۲ دوره کې د خلق او پرچم دڅانگو په وجود کې دا قوت دډېرو مهمو تشکیلاتي تجربو خاوند شو. دې قوت د ۱۹٦۵ کال په جنورۍ کې دخپل تاسیس [۷] سره سم د مارکسیزم-لنینیزم د اصولو له مخې دیوې بې طبقې ټولنې دجوړیدو لپاره طبقاتي مبارزه [۸] پیل کړه. دې گوند په ۱۹٦٦ کال کې دخلق او پرچم په نومونو انشعاب وکړ. دلومړي قوت دا دوه ډلگۍ په ۱۹۷۷ کال کې سره بیا یو شوې [۹] او په ۱۹۷۸ کال کې یې له پاسه، انقلاب ته ورته ،دیوې پوځي کودتا په کولو سیاسي قوت په لاس کې ونیوه.

په افغانستان کې د ۱۹۷۸ کال دثور کودتا عیني شرایط په دې توگه دځیرلو دي: په ۱۹۷۰ لسیزه کې دافغانستان سیاسي- اقتصادي جوړښت، له پاسه دیوه انقلاب کولو ته لاره اواره کړې وه. زاړه سیاسي حاکمیت چې «خان»، «ملک» او «ملا» په کې لاس درلود، په ۱۹۵۰ لسیزه کې دداود خان (۱۹۵۳-۱۹٦۳) دنوې کونې (Modernization) دهلو ځلو په نتیجه کې خپل ځای پرېښی و. دولت دعایداتو نوې سرچینې پیدا کړې وې. په ختیه د پښتنې پورتنۍ طبقې دخان او ملک په ځوی برسېره په پوځ کې دمنځنۍ او ښکتنۍ طبقې څخه د پوځي افسرانو داستخدام او روزنې په نتیجه کې د پورتنۍ طبقې په څنگ کې، په ۱۹٦۰ لسیزه کې دوروستیو دوو طبقو نفوذ هم پیدا شو؛ چې پدې ډول په پوځ کې دلومړي قوت په توگه دکمونستانو،

ددویم قوت په توګه داسلامي بنستپالو - اخوانیانو او ددریم قوت په توګه دنشنلستانو لاس ننوت.(۱۰)

ځمکه واله Landed class او پانګه واله Bourgeoisie class طبقې کمزورې او په هیواد کې دنفوس په پرتله دزراعتي ځمکې کموالي، ددولت په وړاندې د مخالفت دتکولو په خاطر له ځینو ځمکه والو نه دامیر عبدالرحمن خان (۱۸۸۰-۱۹۰۱) په دوره کې دځمکو اخیستل او دشرعې دتوارث دقانون له مخې دمړه په اولاده دهغه دملکیت دویش په بنستیونو په هیواد کې یوه پیاوړې ځمکه واله طبقه له سره موجوده نه وه(Kakar 1979)(۱۱). په ۱۹۵۰ لسیزه کې داقتصاد نوي کولو(Modernization of Economy) داطبقه نوره هم کمزورې کړه. دکمپرادور Comprador په بنه کې ددولت له خوا منځ ته راغلې پانګه واله طبقه ددولتي بیروکراتانو State Bureaucrats په خدمت کې وه(۱۲). پوځي او ملکي بیروکراتانو د یوې طبقې ملا هم نه تړله. نوله ۱۹۵۰ لسیزې نه وړاندې د پوځي کودتا ګران کار دسیاسي اقتصاد د ددوو وروستیو لسیزو ډراماتیکو بدلونونو، افغان سیاست ته دپوځ په رابنکلو، آسانه او له پاسه دیوه انقلاب دکولو لار اواره شوه(۱۳). همدلته ده چې په ۱۹۷۰ لسیزه کې افغان دولت دوه ځلي له پاسه چپه شو.

برسیره پردې:

* په ۱۹۷۰ لسیزه کې په خپلو پښو باندې ددولت په دریدلو، له دولت نه بیل شوی «خان» او «ملا» دومره پیاوړي نه وو چې دمخالفینو پیاوړی کتار جوړ کړي؛(۱٤)

* ددولت دمخالفینو په توګه په خپلو کې سره وران لومړی قوت (کمونستان) او دویم قوت (اسلامي بنستپالنه، اخوانیان) ددولت دچپه کولو ولسي پیاوړتیا نه درلوده؛(۱۵)

* په ۱۹۷۰ لسیزه کې ددرنو اقتصادي ستونزو نه موجودیت هم، ښکاره ده چې، ددولت دغور ځولو عوامل نشو برابرولای(۱٦)؛

* په یوه ناراضه او بې مسئولیته «زما یې څه» موقف کې منځنی تحصیل یافته قشر خوبیخی ددولت په ضد پیاوړی ګواښ نه و(۱۷).

همدا راز لومړي قوت د خلق- پرچم په بنه کې په ۱۹۷۸ کال، د يولړ انقلابي اهدافو د تطبيق لپاره دښکتني طبقې د خپلولو په خاطر (Gupta,1986)[۱۸] شپږم، اوم او آتم دري فرمانونه صادر کړل.

* شپږم فرمان د پور- سود او گروي نه د خلاصون فرمان و. د خلق- پرچم د حکومت ديوه وزير (زېري) له خولې دي فرمان په سلو کې د ۸۱ کليوالو کورنيو پور خلاص کړ (Male، ۱۹۸۲)[۱۹].

دافغانستان د چارو يوه روسي متخصص Glukhoded داټکل له مخې شپږم فرمان د افغان بزگرو د يرش بيليونه افغانۍ (يو بيليون امريکايي ډالره، ۱۹۷۸) پور پرې کړ (Glukhoded, 1978)[۲۰]. مشهور هندي کمونست مکرجي Mukherjee په ۱۹۷۸ کال کې دا پور ۷۲۲ ميليون افغانۍ (ثلير يشت ميليونه امريکايي ډالره) ښودلی دی[۲۱].

* لومړي قوت دولورا او واده په هکله فرمان د ۱۹۷۸ په اکتوبر کې صادر کړ[۲۲]؛

* او د دی قوت بل فرمان بې ځمکو اولږ ځمکو بزگروته د شخصي ځمکو دوړيا ويش آتم فرمان و[۲۳]. دې فرمان په هيواد کې د شپږ ميليون جريبه ځمکې (۱،۲ ميليون هکتاره) د ضبط او توزيع او برسيره پر ۵ ،۲-۲ ميليون کوچيانو يې د ۰۰۰ ۶۳۰ بې ځمکو اولږ ځمکو کورنيو اټکل کړی و. خود خلق- پرچم حکومت يوازې او يوازې ۰۰۰ ۳۳۰ هکتاره ځمکه ضبط او لدې ځمکې نه يې يوازې ۰۰۰ ۲۸۷ هکتاره ځمکه هغه هم په يوازې ۰۰۰ ۲۹۶ بزگرو وويشله (Mukherjee, Glukhoded)[۲٤].

نو ويلای شو، داخو دزړو طبقاتي مناسباتو (طبقاتي گټې -Class In terest) دله منځه وړلو، د خلکو په اجتماعي ژوند کې دلومړي قوت لاسوهنو (Halliday, 1988) Conflect between State and Tribes[۲۵] او له اسلام سره، چې د خلکو په اجتماعي ژوند کې ببخخن نفوذ لري، دلومړي قوت بې پروا برخورد او دښمني (Shahrani, 1984)[۲٦] وه چې خلک يې په لوی لاس دلومړي قوت په ضد، هغه هم د دويم قوت اسلامي بنستپالنې او راډيکاليزم درهبری لاندې، دملي قيام په بنه وسله وال او راپورته کړل.

نو په زغرده ویلاي شو چې، په افغانستان کې د ۱۹۷۰ لسیزې په پای کې د دولت په ضد دلومړی قوت پوځی عمل ولسي بنسټ نه درلود. خوله پاسه د(Trimberger, 1978) دطرح شوی انقلاب له ماډل سره دلومړی قوت (خلق-پرچم) د ۱۹۷۸ کال پوځي عمل پیاوړی ورته والی او دخپلو غلطو تکتیکونو له مخې چې ددې قوت انقلابي پروګرامونه یې ناکام کړل، فوق العاده توپیر لری [۲۷].

په ۱۹۸۰ کې دې ګوند له مجاهدینو سره ملي روغه جوړه اعلان کړه. په ایډیالوژیک لحاظ یې دطبقاتي مبارزې په بنسټ سوسیالست پروګرام شاته واچاوه اوله ۱۹۷۸ راهیسې یې خپل ټول صادر شوي فرمانونه بېرته واخیستل. دې قوت په ۱۹۸۸ کال کې له افغانستان څخه دروسانو دوتلو نه وروسته تر ۱۹۹۲ کال پورې ځانته د «وطن ګوند» نوم ورکړ اوپه یوازې ځان یې دمجاهدینو دسخت پوځي یرغل سره سره ځان ژوندی وساته.

دهمدې قوت په وجود کې و چې، دشوروي اتحاد امپراطوري له خپل ایډیالوژیک سنګر کمونیزم سره یو ځای له پښو ولوېده. له افغانستان څخه دروسانو له وتلو نه وروسته په ۹۲-۱۹۸۸ دوره کې دې قوت په افغانستان کې دربیم قوت ته ورته سیاسي لار ونیوه.

## ۲-دویم قوت، دانقلاب تیوري اوعمل:

په عمومي توګه په عربو کې له اتلسمې [۲۸] اوپه افغانستان کې دنولسمې پېړۍ له پایه [۲۹] دوهابیزم ظهور او عروج، په شلمه پېړۍ کې دپنځ پیري ملایانو ظهور، بیا په ۷۰-۱۹۶۰ لسیزو کې داخوان المسلمین نړیوالې ودې اوپیوستون [۳۰] په سیمه اونړۍ کې داسلامي بنسټپالنې او راډیکالیزم ایډیالوژیک او تشکیلاتي حضور اونفوذ پیل کړ.

په نړیوال کچ په لسمه پیړۍ کې له الماوردي(Al-Mawardi) نه، په ۱۹۸۰ لسیزه کې تر امام خمیني پورې زیات شمیر دیني پوهانو په اسلامي حکومت او ددې حکومت دحکمرانانو په توګه په دیني عالمانو (Ulema) ټینګار کړیدي(Khomeini, 1981)، [۳۱]. مشهور ایراني راډیکال اسلامي پوه علي شریعتي په اسلامي حکومت کې دعلماو له حکمران موقف سره

مخالفت ښودلی دی(Akhavi, S 1982) [۳۲].

اسلامي بنسټپالنه او راډيکاليزم حاکميت په اسلامي نظام کې په خداي (ج) پورې تړلی ګڼي او شريعت يو داسې الهي قانون بولي چې د خلکو پواسطه بدليداي نشي. اسلامي بنسټپالنه او راډيکاليزم اسلامی دولت يو ايډيالوژيک او د نړۍ د ټولو مسلمانانو شريک دولت بولي (وګوری احدی ۱۹۹۱) [۳۳].

داسلامي دولت دنده په اسلامي بنسټونو د ټولنې جوړول او اسلامي قلمرو ته پراختيا ورکول دي. اسلامی بنسټپالنه او راډيکاليزم د نړۍ د ټولو مسلمانانو يووالی او دجهاد او توري په زور يو داسې نړيوال اسلامی دولت غواړي چې په ايډيالوژيک بنسټ ولاړ وي نه په نژاد او مليت. حاکميت پدې دولت کې د خدای په لاس کې دی. يعنی ټول دولتي اداری سيستم د خداي په قانون ، شرعې ، چليږي. اسلامي بنسټپالنه پدې عقيده هم ده چې داسلامی دولت تأسيس يوازې او يوازې داسلام د عملي کيدو لپاره دی او بس.

داسلامي دولت ټولواک Chief Executive (امير ، خليفه ، امام) چې په اسلامي دولت کې له ټولو نه زيات مقتدر او دزيات واک خاوند دی بايد نروي نه ښځه [۳٤].

د مولانا ابو الاعلی مودودی په خلاف ، ايت الله خميني داسلامي دولت مشر په شرعې او نورو چارو باندې په پوهېدلو مکلف ګڼي. امام خمينی او مودودی دواړه « اجتهاد » او د « شرعې بشپړ تطبيق » داسلامي دولت د مشرۍ دوه بنسټيز شرطونه او حتمي دندې ګڼي. پداسې حال کې چې سيد قطب او مودوی داسلامي دولت د مشر دانتخاب خبره د خلکو خوښې ته پرېږدی؛ خميني د ممتازو علماو له خوا د هغه په ټاکلو ټينګار کوي.

په هر حال ، نه قطب ، نه مودودي او نه خميني يوهم د موکراسي د خلکو د حاکميت داصل په توګه (Sovereignty of the people) نه مني (Binder, 1988, Fischer, 1983) [۳۵].

شريعت(Sharia) او فقهي(Islamic Jurisprudence) ته په زيات اهميت ورکولو سره سره ، بياهم نه خميني او نه قطب ، يوه هم ، داسلامي

## دریيمه برخه:



## څلورمه برخه:

# مننه

خوشحو ځلي او هغه هم په ورين تندي او سړه سينه ددې ليکنې د کمپوز وياړ په رښتيا چې دغازي ليزر کمپوزنګ دمشر ښاغلي مصطفی سحر په برخه دی. زه پدې اړه هغوی ته ډېر ډېر کور ودانی وايم.

ددې څېړنې دموخذونو دبرابرولو په برخه کې زما دانديوال، د واک فونډيشن دافتخاري غړي او د ختيځ دبياودانولو دادارې (کور) دمشر ښاغلي ډاکتر فريد بزګر زيار او هڅې دډېرې ستاينې وړ دي.

په پاى کې دواک فونډيشن دټولنيزو څېړنو دڅانګې دغړي ښاغلي جبلاني ځواک او ددې فونډيشن دټول مشرتابه نه چې ددې څېړنې په کار او خپرولو کې يې ماته اوږه راکړه، دزړه له کومې مننه کوم.

انجنير محمد انعام واک

۱۳۷۸ لمريز کال

دوړي نولسمه

ولي آباد - پښتونخوا

# ضروري یادونه

له دې یادونې څخه زما مطلب د اسلام د بنسټپالنې، بنیاد گرایي، سخت دریځي، اورپکي او نورو ننني مروجو اصطلاحاتو د په ځای استعمال خبره ده. په انگریزي لیکنو کې د دې ژبې د Islamic Fundamentalism یعنې «اسلامي بنسټپالنې» د ډېرې عامې او مروجې کلیمې په څنگ کې نن سباد Islamic Radicalism (Sivan, 1985) او یا Revolutionary Islam، Traditional Islamic او یا Modern Islamic Fundamentalism اصطلاحات (*) Islamist (Roy, O., 1985) او Fundamentalism په عمومي ډول د اسلامي سخت دریځي او بنسټپالنې: وهابیانو، اخوانیانو او نورو لپاره استعمال شویدي. د دې په څنگ کې د "Fundamentalist" Islamic Revolutionaries اصطلاح یوازې د «اخوانیانو» لپاره استعمال شوې ده (**).

خو، پدې ځېرنه کې کله کله داسې هم شوي چې، «اسلامي بنسټپالنه» د اسلامي سخت دریځي د ټولو ډلو ټپلو لپاره استعمال کړم. په هر حال، سره لدې چې زه لا پخپله د اسلامي سخت دریځي او بنسټپالنې بیلو بیلو څانگو ته د لازمو اصطلاحاتو دورکولو په دې کار قانع نه یم، خو بیا مې هم پدې لنډ، تنگ وخت کې د یوه سمدستي ضرورت له مخې د اسلامي بنسټپالنې Islamic Fundamentalism اصطلاح د «وهابیت»، د اسلامي راډیکالیزم Islamic Radicalism یا اسلامي سخت دریځي اصطلاح د «اخوانیت» لپاره راوړې او «سیاسي ملایان» مې د طالبانو په بڼه کې د اسلامي سخت دریځي، بنیاد

(*) See Anwar-ul Haq Ahady, The Decline of Islamic Fundamentalism, Journal of Asian and African Studies, XXVII 3-4 (1992), pp. 224-241.

(**) Asger Christensen, Religion and Politics in countemporary Afghanistan: The Tragedy of Afghanistan, pp.13.

گرايي او اورپکې سياسي کارکوونکي گڼلي دي. په بله ژبه Islamic Fundamentalism يا «اسلامي بنسټپالنه» د شيخ الاسلام عبدالوهاب نجدي د مکتب او پيروانو يعنې «وهابيانو» او اسلامي راډيکاليزم Islamic Radicalism يا «اسلامي سخت دريځي» مې د سيد قطب، مولانا ابو الاعلی مودودي او څه ناڅه آيت الله خميني د طرز تفکر او په ځانګړي ډول د «اخوانيانو» لپاره استعمال کړې ده. خو په مجموعي توګه مې «د اسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم» ګډه اصطلاح ټولو نننيو افغان بنسټپالو: اخواني، وهابي او طالب ته استعمال کړې ده. خو، په خپلو کې د اسلام د سره ورانې او ويشلې بنسټپالنې بېلو بېلو څانګو ته د اصطلاحاتو دا ډول انتخاب او نسبت ورکول به نه سل په سلو کې په ځای وي او نه خو به، د نوموړو «اصطلاحاتو» او «څانګو» ترمنځ د ګډو ايډيالوژيکو ريښو په بنسټ له واقعيت نه لرې وي.

هيله ده، ګران لوستونکي د دې څېړنې په لوستلو کې دا يادونه په نظر کې ونيسي.

په مينه

مؤلف

# سریزه

کمونستي راډیکالیزم دخلق- پرچم په بڼه کې دلومړي قوت او اسلامي بنسټپالنه او سخت دریځي داخوانیانو، وهابیانو او نننیو سخت دریځو سیاسي ملایانو (طالبانو) په بڼه کې ددویم قوت په توګه، لې ترلږه دډموکراسۍ دلسیزې (۷۳-۱۹٦٤) څخه په افغانستان کې په ښکاره دسیاسي قدرت دنیولو کار پیل کړ. دریېم قوت هم دننني بحران ددوو عواملو په توګه دهمدې دواړو قوتونو په وړاندې دډموکراسۍ په نوموړې لسیزه کې منځ ته راغی.

دریېم قوت په افغانستان کې یو مترادف ملي جریان دی چې، دلومړي او دویم قوت په څېر یې نه بهرنۍ ننګه او نه کورنۍ پیاوړې سیاسي ډله ټپله، یوه هم نه درلوده. همدلته ؤ چې، لومړي قوت په ۱۹۷۸ او دویم قوت په ۱۹۹۲ کال سیاسي قدرت تر لاسه کړ. خو دې دواړو قوتونو په هیواد کې دسیاسي قدرت په سمبالولو کې په پاتې راتلو، هیواد دسیاسي زعامت له ژور بحران سره مخ کړ.

دریېم قوت نن سبا، نه یوازې داچې ددویم قوت په څېر یو بالفعل قوت ندی، په خپل بالقوه حالت کې هم ډېر کمزوری او لویدلی دی؛ نه یوازې داچې یو پوځي ځواک ندی، یوایډیالوژیک جریان هم ندی. دا سمه ده چې، لویه جرګه، باچا، پیر، افغان ملت ګوند، تصوف، غیر بنسټپال او معتدل مذهب او کوم غیر سیاسي ملا، بل اوبل ددې قوت مهم جوړوونکي توکي دي. خو، دا ټول سره شیندلي، بیل بیل ځواکونه او منفردې څېرې دي، چې یو موټي کیدو ته اړتیا لري. داسې هم نده چې، ددې قوت مخالفین بیخي له پښو لویدلي او میدان تش دی. نه، دیوه ټوټه شوي او سټړي شوي پوځي سیاسی قوت په توګه، نه یوازې پرون، بلکې همدانن هم اسلامي بنسټپالنه او راډیکالیزم ددریېم قوت پیاوړی او ژوندی دښمن دی. نو یو شیندلی، غیر وسله وال او غیر ایډیالوژیک دریېم قوت هیڅکله هم یو بالفعل او وړونکی قوت ندی؛ داسې قوت چې دخپل پیاوړي دښمن په ماتولو، په هیواد کې دزعامت راغلې سیاسي خلا ډکه کړي.

دریېم قوت یو مسلمان او افغان قوت دی. خو، نه یوازې داچې، نه

د پروني لومړي قوت مانفست او نه په لاس کې دننني دويم قوت «قرآن» [٤] او ايستلې «توره»، يو هم نه لري.

په دغسې يوه عيني چاپيريال کې په ۱۹۸۸ کال کې، دافغان سوسيال دموکرات گوند (افغان ملت) دخپرونکي مرکزي اورگان «افغان ملت» دجريدې دمسؤل مدير په توگه، ما ددې جريدې په دولسمه، ديارلسمه او څوارلسمه، درې واړو گڼو، کې ددرېيم قوت په هکله څه خپرونې وکړې، چې دهغه وخت ددويم قوت په توگه داسلامي سخت دريځو او بنسټپالو دسخت عکس العمل سره مخ شوې. له هغې را وروسته، وخت په وخت، لکه نن، څوڅو ځلي «درېيم قوت» دافغان سياست نغرى تود ساتلى دى.

نن هم هماغه پروني چاپيريال دى. خو ديو ملي جريان دلاروي په توگه ددرېيم قوت نننني غږ غوږ، سره لدې چې ماته ددې قوت سره داسلامي بنسټپالنې او راډيکاليزم پروني کينه او دښمني مخې ته درولې، بيا مې هم ديوه ملي ضرورت له مخې ونشو کولاى په درېيم قوت څه ونه ليکم.

پدې څېړنه کې ددرېيم قوت په پرون او نن او ددې قوت په جوړوونکو توکو برسېره، ددې قوت بالقوه - سياسي، بالفعل - پوځي او ايډيالوژيک اړخونه هم څه ناڅه څېړل شوي دي.

هيله ده، دا څېړنه به په خپل وار، په هيواد کې دملي جريان دلومړي گام په توگه ددرېيم قوت دجوړيدو له لارې، په هيواد کې په «افغاني» بنسټ د «دولت» او «ټولنې» په فزيکي او معنوي بيا رغونه کې لاس وکړي.

په مينه

محمد انعام واک
۱۹۹۹ کال
دسپتمبر ۵ مه
ولي آباد - پښتونخوا

افغانستان:

# دريم قوت






ليکوال:

انجنير محمد انعام واک

۱۳۷۸ لمريز






## دکتاب پیژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| نــــوم | : | افغانستان: دربیم قوت |
| لــیکــوال | : | انجنیر محمد انعام واک |
| کــمــپــوز | : | غازي کمپوزنگ سنتر «مصطفی سحر» |
| خپـرندوی | : | واک فونډیشن دافغانستان لپاره |
| دواک فونډیشن د خپرونو لړ | : | شپږم |
| شــمــېــر | : | پنځه سوه |
| بــیــه | : | پنځوس روپۍ |
| نــېــتــه | : | ۱۳۷۸ لمریز کال |

# ډالی

خپلو بچیانو ته:

په دې هیله، چې سبا به دوی ته د درېیم قوت منډ مات شوی وي



ابدالي - آریانا - هیواد

# سرليکونه